یادښت

# کندهار

دیني ، علمي ،ادبي ، اجتماعي ، تاریخي

د کندهار د اطلاعاتو کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه

تاند قلمي‌هوړ ځلونه

د بشر د
حقوقو مبارز
عصمت قانع



په خپلو پراختیا یې
کارونو مو د چاپریال
ډیر ناوړه اضرار له
مینځه وړی دی
د کندهار د کلیوالو پراختیا رئیس



وطن
یا کفن
یا ځړکند
جنایت

د کوکنارو د بندیز هدف د ټولنې اصلاح وه د بشر د حقوقو اداره
دی د اسلامی امارت د دی بشردوستانه اقدام درناوی وکړی (عبدالحمید اخندزاده)



## ان تحرص علی هدٰهم فان الله لا یهدی من یضل و مالهم من نصرین (٣٧) سوره النحل

که ته ډیر حرص وکړې ( اې محمده ! ) پر هدایت د دوی نو بیشکه چه الله نه ښیی لاره ( د هدایت ) هغه چا ته چې ګمراه کوي (ئې ) او نه به وي دغو ګمراهانو ته هیڅ له مدد ګارانو ( مانع له عذابه د نیران ).

### تفسیر :

یعنی پاك الله هرهغه څوك چه د قصور د استعداد یا د بد اختیاري په بنا ګمراه ( بی لیارې ) کړی وي ، هغه ته هیڅوك د هدایت لار نشي ښودلی او نه ئې هیڅوك د الله تعالی له سزا څخه ژغورلی شي ـ ستاسې دغه ډیره طمعه او زیات حرص هم د دوی د هدایت په نسبت ، هیڅ فائده نشي رسولی ، نو بیا تاسې د دوی په فکر او غم کښې ولې دومره زیات خپل ځان کړوئ ؟ او ولې خپل سر دومره زیات ورپسي ګرځوئ ؟ .

د ښنتی شرحه





# کندهار

دیني ، علمي ، ادبي ، اجتماعی ، تاریخي

دوه میاشتنۍ خپرونه

د کندهار اطلاعاتو او کلتور ریاست دوه میاشتنۍ خپرونه
د ۱۴۲۱ هجری سپوږمیز کال د شوال المکرم او ذیقعده الحرام
میاشت یا د ۱۳۷۹ هجری لمریز کال د سلواغې او کب میاشت

## کندهار مجله

د تاسیس کال : د وري میاشت ۱۳۳۹ لمریز کال .
دوهم ځل خپریدنه : د سلواغی میاشت ۱۳۷۷ لمریز کال
پرله پسې دیارلسمه ګڼه
د دریم کال شپږمه ګڼه

## اداره

مسئول مدیر : ملا سلیمان آغا " بهیر "
کتونکې ډله :
۱ ملا عبدالحی " مطمئن "
۲ محب الله " اسحاقی "
۳ عبدالواسع " هځیال "




## پته

د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د مجلی دفتر
تلیفون، فکس : ۰۴۴-۲۱-۳-۹۳+ یا ۸۳۷۷۰۷-۸۱-۹۲+
په پیښور کې
G.B.D .18 پلازه کارخانو مارکیټ دباختر چټك پست نماینده ګی
په کوټه کې
دفتر OCS جناح روډ
دباختر چټك پست نماینده ګي

## ګلنۍ ګډون

په کندهار کي ۹۰۰۰۰ افغانۍ
په نورو ولایتو کي ۱۲۰۰۰۰ افغانۍ
په پاکستان کي ۲۰۰ پاکستانۍ کلداري
په لیري هیوادونو کي ۵۰ امریکائي ډالره
د یوی ګڼي بیه ۲۰۰۰۰ افغانۍ یا ۲۰کلداري
زده کونکو ته د تصدیق په لرلوسره په نیمه بیه باندی ورکول کیږی

## تخنیکي چاري

کمپوز او ډیزاین : د الامارت کمپیوټر اداره
کمپوزر : میر روح الله " سادات "
د چاپ ځای : د کندهار امارتي مطبعه

## لیک لړ

سرلیک — مخ

# یادښت



# تاند قلمي مورچلونه

کم او زیات نیمه پیړۍ وړاندې چې انګریزي استعمار په ټوله اسیا کې خصوصا د هند په نیمه وچه کې نظامي او سیاسي خواک له لاسه ورکړ او تر خپلې مرکزي جزیرې ( برطانیې) پورې یې له نورې نړۍ نه پښې سپکې کړې .

نو د خپلې همدغې عظیمې ماتې د جبران او د ورپاتې خواک د کلکولو او د نړۍ په سیاسي تحولاتـو کـې د فعالانـه ډول د ادا کولو په نیت داسې پریکړه وکړه چې پرغرب کې یو داسې مطبوعاتي بهیر په مخ بوزي چې د ازادۍ او بې طرفه دریځ تـر دروغجن عنوان لاندې د غربي متحدو حکومتونو د اهدافو او ګټو د تامین او انکشاف لپاره د تودې او سړې جـګړې د مـهمو سنګرونو په توګه کار ورکړي .

د هغوی دغه اقدام بنایي د ( ویتنام ) په تاریخي جګړه کې د ژورنالیزم د فعالانه او اغیزناک رول لـه تجربـې څخـه سرچینـه اخیستې وي .

د برطانیوي حکومتونو دغه ابتکار ټولې غربي نړۍ د ځان یوه مهمه تګلاره وګرځوله نن په دنیا کې د اسلامي هیوادونو اکثره اوسیدونکي د غربي مطبوعاتو اوریدونکي او لوستونکي دي که د غرب دښمن وي او که یې دوست خـو غربـي نـړۍ د خپل ستر استاد ( انګریزي حکومت ) د ورزده کړي چارو په زور ټول د خپلو مطبوعاتو د اوریدلو او لوستلو په حال کـې ګیر کـړي دي .

که په عراق کاسو فلسطین او ... کې امریکي او غربي طاقتونو په مستقیم او غیر مستقیم ډول جګړیز حرکت رامینځ ته کیږي نـو غربي مطبوعاتو د یوه داسې فعالي قومنداني وظیفه اجرا کوي چې له یوې خوا د جګړې ظلم او ستم کولـو قومنـده ورکـوي خو له بلې خوا د یو منصف قاضي په توګه په اولسونو باندې منې او د ظالم لقب په تبلیغاتي هڅو سره په عادل بدلولی شي .

اسلامي امت چې نه یواځې غرب بلکې نړیوال کفرته یې په ټش لاس په هر ډګر کې ماتې ورکړې خو له بده مرغه پـه اوسـنۍ پیر کې اسلامي هیوادونه د غربي استعمار ترسایه لاندې حکومتونو په واک کې دي او مطبوعات یې هم په غربـي تقلیـد مبتلا دي چې د اسلامي ارمانونو د تحقق لپاره یې هیڅ موثر فعالیت نه دی بلکې اکثره یې پدې لاره کې دښمنانه رول ادا کوي نو د دې لپاره چې خوریدلی مسلمان امت د خپلو نوو نسلونو ازهان له کفري وسوسو او د غرب له شـیطاني توطیـو وژغـوري باید اسلامي فرهنګ ته وده ورکړل شي او په دې لاره کې مطبوعاتي ډګر تود وساتل شي

نن چې زموږ د ګران هیواد افغانستان او مجاهد اولس د ارمانونو د تحقق په لاره کې نړیوال کفر سره متحد شوی او د اسـلام او افغان ضد روحیې د رامینځ ته کولو په لارو کې په سلګونو په پخپلو او پردیو ژبو خپروني په کار لویدلي نو د افغانستان خوان ، مسلمان فرهنګي قشر ته پکار دي چې پدې لاره کې خپل قلم ته د زړه وینې وروبخښي تر څو مطبوعاتي سـنګرونه د عـالمي او افغان ضد کفر د روانو هڅو په وړاندې مقاومت وکړي . او پرې نه ږدي چې د مسلمان امت بچیان د اسـلامي انقـلاب لـه شپیلۍ نه غافله شي . موږ د خدای شکر ادا کوو چې په اوسنیو شرایطو کې یې د کندهار په ښار کې چې د فرهنګي کدرنو د نشته والي له امله په درانه فرهنګي فقر مبتلا دی بیا هم دومره وس راکوی چې څو تا نده قلمي مورچلونه ټینګ کړو .په اوسـنی پیر کې د خلافت میاشتنی ، کندهار دوه میاشتنی ، امارت میاشتنی ( انګریزي او عربـی ) مجلـو او د ارغنـد او طلـوع افغـان د جریدې او ورځپاڼې چې د کندهار په ښار کې په ښکلي او عالي صحاف خپریږي دا د څو تنو با احساسه او مسلمانو زلمیو د نه ستړې کیدونکې هڅو او د ایماني قوت او ضمیر د وښتیا پایلې دي د دې تاندو قلمي مـورچلونـو ورځ پـه ورځ پیاوړتیا نـورو مسلمانو خوانانو ته د همدې ډول سپیڅلو هڅوالهام ورکوي .

هیله ده زموږ د ملت با احساسه بچیان قلمي خواک د همداسې لویو ارمانونو لپاره وقف کړي

د اسلامي او ملي ارمانونو د تحقق په د عا

اداره

د عزيزالرحمن اسحاقزي ژباړه

# د قرآن کريم سورتونه اود هغوی مضامين

۹۱- سوره الشمس :
دغه نوم دسورت د اول آيت " والشمس وضحها " څخه مـاخذ دي .د دې سورت ابتدا پـه قسمونو باندی کيږی . پـه دې سورت کې د توحيد او آخرت د بشپړې بلنی او د منکرينو د انجام په اړه خبری سوی دي .
۹۲- سوره اليل :
دغه نوم د دغه سورت د لمړی آيت د کليمی " واليل " په نسبت اينبول سوی دی ، د دغه سورت اصل مضمون آنفاق دی . يعنی د الله تعالی جل جلاله مال د الله تعالی " ج " پـه لاره کې خرخول د دې سورت ابتدا هم په قسمونو سره کيږی .
۹۳- سوره والضحیٰ :
په دغه سورت کې الله تعالی " ج " په " ضحیٰ " باندی قسم اخيستی دی ، چی معنیٰ يې ده د لمر د لوړيدو وخت ، نو ځکه دغه نوم ورکړل سوی دی پدې سورت کې ښودل سوی دي چې محمد رسول الله " ص " د مکې د کفارو سره د وعـدې کولـو وروسته انشاالله وه نه ويل ، نو ځکه وحی باندی بندی کړل سوی .
۹۴- سوره النشراح :
دغه نوم د اولی کليمی " الم نشرح " پر بنياد باندی اينبول سوی دی پدې سورت کې د الله پـاك د خپـل پيغمبر د تسکين دپاره د هغـه نعمتونـو شميرنه سـوی ده چې آنحضرت " ص " ته ورکړل سوی دي او فرمـايلی يې دي چی انسـان تـه د هر کـړاو وروسته هوسايې ورکول کيږی .
۹۵- سوره التين :
د لمړی کليمی " والتين " څخه د دغه سورت نوم اخيستل سوی دی . پدې سورت کې دا ثابت کړل سوی دي چې يوه ورځ بـه داسی راسی چې د ښو او بدو کـارو بدلـه بـه ورکول سي .
۹۶- سوره علق :
د دغه سورت نوم د دوهم ايت د کليمی " خلق الانسان من علق " څخه ماخذ دی . د دغه سورت لمړی آيت د قرآن شريف د نازليدو له مخې لمړی آيت دی . چی پـه دغـه کې رسول اکرم " ص " ته ويل سوی دي چی ووايه په نامه سره د خپل رب .
۹۷- سوره القدر :
د دغه سورت نوم د دغه سورت د لمړی آيت د جملې " انا انزلنه فی ليله القـدر " څخه اخذ کړل سوی دي . په دې سورت کې د قرآن د نازليدو په باره کې ويل سوي دي چې موږ دغه ( قرآن کريم ) پـه ليله القدر کې نـازل کـړی . او ورسـره دغـه شـپه د انسانانو دپاره بشپړه د سلامتی شپه ده .
۹۸- سوره البينه :
دغـه نوم د لمړی آيت د کليمـی " البينـه " څخه اخيستـل سـوی دي . پـه دې سـورت کې د آنحضرت " ص " راوړل سوې شريعت تـه " روښـانـه " د ليـل ويـل سـوی دي . او خلگو ته د لمونځ کولو ذکات ورکولـو او د نيکو ( ښو ) کارونو کولـو حکم کړل سوی دي .
۹۹- سوره زلزال :
د دغه سورت نوم د لمړی کليمی " زلزالـها " په نسبت اينبول سوی دي . پدې سورت کې د قيـامت د منـاظرو پر بيـان سربيره د شديدې زلزلې ذکر هم سوی دي .
۱۰۰- سوره العاديات
د دغه سورت نوم هم د اول آيت د کليمی " ولعاديات " څخه مـاخذ دی . پدې سورت کې ويل سوی دي چې د دغه ژوند وروسته يو بل ژوند هم سته . چی هلته به انسـان و خپـل بـادار تـه د خپلـو اعمـالو جـواب ورکوي چې د هغه څخه هيڅ خبره پټه نه ده
۱۰۱- سوره القارعه :
پـه دغـه سـورت کې د " القـارعـه " کليمـه درې خله راغلی ده . نو ځکه دغه سورت " القارعه " وبلـل سـو . پـدې سـورت کې د قيامت يوه ويرونکی انځور وړاندې سوی دی نو د دغه ويرونکی ساعت د تباهيو اندازه ولگوي چی حتما راتلونکی ده .
۱۰۲- سوره التکاثر :
دغه نوم د دغه سورت د اول آيت د جملې " الهٰکم التکاثر " څخه اخذ کړل سوی دي .

په دې سورت کې الله تعالی " ج " د هغه فریب څخه پرده پورته کړې ده چې انسان په عام ډول په اخته وي او خپل مالك و خالق يې هير کړې وي .

۱۰۳- سوره العصر :

د لمړۍ آيت د کليمي " والعصر " څخه دغه نوم اخيستل سوی دی . په دې سورت کې د انسان د پيدايښت اصل مقصد يعنی (عبادت) بيان کړل سوی دی . او ورسره د صبر سره دخپل نفس اصلاح کولو باندې هم تاکيد کړل سوی دی .

۱۰۴- سوره الهمزه :

د دغه نوم دپاره داول آيت کليمه " همزه " بنياد ايښول سوی دی . په دې سورت کې ويل سوي دي چې طعنه " پيغور " ورکونکو او عيب لټونکو دپاره لويه خرابی ده او ورسره د نافرمانی کونکو دپاره د دردناکه عذاب هم ذکر راغلی دی .

۱۰۵- سوره الفيل :

د دغه سورت نوم د لمړی آيت د کليمي " اصحاب الفيل " څخه ماخذ دی . په دې سورت کې د هغه فيل لرونکو ذکر سوی دی کوم چې د خپلو فيلانو سره د د کعبی شريفی دورانولو د پاره راغلی وه . او د کافرانو او منکرانو دپاره دعبرت مقام دی .

۱۰۶- سوره القريش :

د اول آيت کليمه " قريش " د دغه سورت د نوم بنياد جوړ کړل سوی دی . په دې سورت کې الله رب العزت " خپل هغه عظيم احسان خپلو بندګانو ته وريه يادوي چې پر انسانانو باندې د نعمتونو په توګه کړل سوي دي .

۱۰۷- سوره الماعون :

د دغه سورت نوم د دغه سورت د آخري آيت د جملی " و يمنعون الماعون " څخه اخيستل سوی دی . په دې سورت کې د هغو خلګو نقشه وړاندې سوې ده چې دهغوی په ژوند کې که څه هم مذهبی اداینې به وې ليکن د دوی اصلی کړنې د خدای پرستی څخه ډيرې ليرې وه او د دوی پر عبادت به هم د لوبو او تفريح رنګ خپور وو .

۱۰۸- سوره الکوثر :

د دغه سورت نوم د دغه سورت د اول آيت د جملی " انا اعطينك الکوثر " څخه اخيستل سوی دی . په دې سورت کې الله تعالی " ج " د آنحضرت " ص " د مرتبې لوړوالی " ښکاره کړی دی او د اسلام پر دښمنانو يې دا واضح کړې دي چې د اسلام دين حق دی او حق به هميشه غالب وي .

۱۰۹- سوره الکافرون :

دغه نوم د دغه سورت د لمړی آيت " قل ياايهالکافرون " څخه اخذ کړل سوی دی . په دې سورت کې د مسلمانانو او کافرانو تر منځ د بشپړې صلحې تذکره ده او دا واضح کړل سوې دي چې په کفر او اسلام کې هيڅکله صلح نسی کيدای

۱۱۰- سوره النصر :

دغه نوم د اول آيت " اذا جاء نصرالله ولفتح " څخه اخيستل سوی دی . په دې سورت کې د مکې د فتحې ذکر راغلی دی . او دا هم ويل سوی دي چې په دنيا کې هغه خلګ کامیابه کيدای سی چې د الله پاك " ج " حکم منی .

۱۱۱- سوره اللهب :

دغه نوم د لمړی آيت د جملې " تبت يدا ابی لهب وتب " څخه اخذ کړل سوی دی درې سورت د مطالعی وروسته کومه نتيجه چې اخيستل کيږی د دې څخه دا ظاهريږی چې اسلام دعقيدې او د عمل نوم دی او د الله " ج " د حکم د نه منونکو دپاره دواړو جهانو کې نقصان او تاوان دی او مشرکين په لويه خساره کې دي .

۱۱۲- سوره اخلاص :

په دې سورت کې الله تعالی " ج " دهغو صفتو تعليم ورکړل سوی دي چې د اخلاص بنياد دي نو ځکه د دغه سورت نوم "اخلاص " کښيښودل سو . پدې سورت کې د الله رب العزت وحدانيت و ثبوت ته او اضافه شيانو څخه پاك ښودل سوی دی او په ډيره موثره او بليغه ډول وړاندې کړل سوی دي .

۱۱۳- سوره فلق :

چونکه په دې سورت کې د الله تعالی د هغه صفت ذکر په خصوصی طور کړل سوی دی ، چې د هغه تعلق د نور سره دی نو پر دغه بنا دغه سورت " سوره فلق " وبلل سو . په دې سورت کې د خلګو قسمونو شرونو څخه د پناه غوښتلو ذکر هم راغلی دی .

۱۱۴- سوره الناس

ځکه دې سورت ته الناس ويل کيږی چې په دې کې په خصوصيت سره د الله تعالی صفتونه بيان کړل سوی دی پدې سورت کې د شيطان د شر څخه د پناه غوښتلو دپاره د الله تعالی درې نومونه رب . ملك ، اله اخيستل سوي دي .

پای



# حرص او طمع

حرص او طمع هغه بد شیان دي چې پدې شیانو د انسان د نفس سپکوالی او ټیټوالی په ښکاره ډول څرګندیږي. په قران عظیم الشان کې د حرص او طمع څخه د (شح) په کلمه باندی تعبیر شویدی. مفسرین رحمهم الله وایي چې شح زیات بخل ته وایي چې ډیر حرص او طمع ورسره ګډوي او شح په انسان کې یوه نفسي غریزه ده عبدالله ابن عمر "رض" فرمائي: (انما الشح ان تطمع عینه فیما لیس له - تفسیر صابوني ۲۸ پاره سوره حشر دنهم آیه په تفسیر کې) یعنی شح دیته ویل کیږی چې د یو چا سترګی د هغه څه په طمع کې وي چې دی یي نلري. په قران کریم کې د شح بدي په ډیرو ځایونو کې راغلی ده. الله تعالی چې مسلمانانو ته د مالونو اولادونو د فتنی او آزموینې کومه یادونه کوي پدی ترڅ کې د تقوی، سمع، اطاعت په کولو سربیره ورته فرمایي: (و انفقوا خیرا لانفسکم و من یوق شح نفسه فاولئك هم المفلحون - سوره تغابن ۱۶ آیه) خپل شیان د خپلو ځانونو د ګټی لپاره نفقه کړی او هغه څوك چې د نفس بخل څخه وساتل شي نو دوی خامخا بریالی دی. همدغه راز الله تعالی د مدینی د انصارو د ایثار او فداکاری د ستایلو په ترڅ کې فرمایي: ویوثرون علی انفسهم و لو کان بهم خصاصه و من یوق شح نفسه فاولئك هم المفلحون - سوره حشر ۹ آیه) او غوره کوي پخپلو ځانونو، او اګر که وي پر دوی باندی تنګی (فاقه) او هر هغه چې وساتلي شي له بخل، حرص او طمع د نفس د ده نه نو همدغه کسان دي هم دوی مراد موندونکی په مراد رسیدلي.

په انسان کې د حرص او طمع جذبه دي حد ته رسیدلی شي چې یو کس د بل مرګ وژلو او تالاکولو ته راولاړ وي له همدې کبله رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي: (واتقوا الشح فانه اهلك من کان قبلکم، حملهم علی ان سفکوا دمائهم و استحلو امحارمهم - تفسیر صابونی ۲۸ پاره سوره حشر د نهم آیه په تفسیر کې) د حرص او طمع څخه ځانونه وژغوری چې دغه شیانو له تاسی څخه وړاندی او پخوانی خلك تباه کړیدی همدی شیانو هغوی راوپارول او د هغوی وینی یې تویې کړی او حرام یې حلال وګڼل. څنګه چې د طمع او حرص غریزه د انسان لپاره ډیره ګمراه کوونکې او تباه کوونکی ده نو رسول الله صلی الله علیه وسلم د طمع او حرص په خلاف د قناعت ستاینه کوي او فرمایي: (طوبی لمن هدي للاسلام وکان عیشه کفاقا و قنع به - ترمذي د احیا علوم الدین په حواله ۳ج_۲۳۸ صفحه) خوشحالي د هغه چا په حال ده چې اسلام ته یې لاره موندده او ژوند یې د کفاف په اندازه او وربانذی قانع وي. رسول الله صلی الله علیه وسلم له طمع څخه منع فرمایي: ابو ایوب انصاری (رض) روایت کوي چې یو سړي رسول الله صلی الله علیه وسلم ته راغی او ورته یې وویل: (یا رسول الله عظني او آوجز، فقال: اذا صلیت فصل صلاه المودع، و لا تحدث بحدیث تعتذرمنه غدا واجمع الیاس مما فی ایدی الناس - ابن جامه و احیاءعلوم الدین په حواله ۳ج - ۲۳۹ صفحه) یارسول اکرم صلی الله علیه وسلم ماته وعظ او نصیحت وکړه نو هغه (محمد صلی الله علیه وسلم) ورته وویل کله چې لمونځ کاوه نو داسی لمونځ کاوه چې ګویا هر څه سره دی وداع کړیده داسی خبره مکوه چې وروسته ورڅخه ښښنه غواړی. هغه شي چې د خلکو سره دی طمع یې مکوه. الله "ج" دي مونږ ته قناعت نصیب کړی اود حرص او طمع څخه دی نجات راکړی.

سور غر سليمان خيل

# پر افغانستان د بندیزونو لپاره د امنیت شورۍ نوی پریکړه لیک

د دې کرښو تر چاپیدو مخکې شاید د روان عیسوی کال د جنوری پر شلمه نیټه د ملګرو ملتونو د امنیت شورۍ پریکړه لیک د افغانستان د اسلامی امارت په وړاندې عملی شی .

دغه قرارداد د ۲۰۰۰ع کال د دسمبر په شلمه د ملګرو ملتونو د امنیت شورا لخوا تصویب شو او د ضرب الاجل په توګه د افغانستان اسلامی امارت ته د ۲۰۰۱ کال د جنوری تر شلمی نیټی پوری وخت ورکړای شو تر څو د نړیوالی ټولنی ځینی غوښتنی ومنی دغه غوښتنی هماغه د امریکا د متحده ایالاتو د حکومت غوښتنی دی چی د یوه نړیوال پلوټ فورم د جابرانه او ناروا استعمال په وجه یې بین المللی حقوقی رنګ ورکړی دی .

د افغانستان اسلامی امارت له دی نه مخکی هم د نړیوالو بندیزونو ښکار شوی وو ، او د بین المللی ټولنی په وړاندی ځینی خنډونه او ممانعتونه په مصنوعی ظالمانه او غیر عادلانه توګه ورته ایجاد شوی وو .

د ملګرو ملتونو د نوی قرارداد متن نه تنها تر پخوا سخت دی بلکه د قرار داد په مسوده کی درج شرایط په مستقیمه توګه د یوه ازاد خپلواک ناپیلی او اسلامی هیواد په کورنیو چارو کی د زور او تزویر د بدنامو قوتونو د ښکاره او بربنډی لاس وهنی انکار نه منونکی بیلګی او نمونی دی . دافغانستان د اسلامی امارت د بهرنیو چارو وزارت د قرار داد د تصویب په وړاندی د خپل هیواد دریځ او موقف اعلان کړ .

د بهرنیو چارو وزیر وویل چی زموږ هیواد قرار داد له یوی صحنی ردوی او د افغانستان اسلامی امارت په قرارداد کی د درج شویو شرایطو د عملی کولو په وړاندی نه مکلف دی او نه په دی هکله چا ته ژمنه تعهد او قول ورکولای شی . زموږ د هیواد قیادت په زغرده ویلی دی .

که چیری ملګری ملتونه او د امریکا د متحده ایالاتو حکومت د افغانستان په وړاندی خپل ناروا او ناوړه چلند بدل نه کړی نو افغانستان مجبور دی چی د خپل حاکمیت په قلمرو کی د امریکا او ملګرو ملتونو د دیپلوماتیکو ګټو ټول مراکز وتړی .

د افغانستان اسلامی امارت د امنیت د شوری په نوی تصویب شوی پریکړه لیک کی مندرج شرایط د افغانستان د خلکو په روانه غمیزه کی د زیاتوالی لپاره د افغانستان د مومن ملت په وړاندی د دښمنی اقدامات ګڼی او په کلکه یې رد وی .

پداسی حال کی چی زموږ هیواد له دوه ویشت کلنی اوږدی جګړی وروسته د سرتاسری سولی دټینګښت روا او مظلوم ارمان ته د وصال غیږه ورکړی ده خو په دی وخت کی د نړیوال کفری جهالت لخوا زموږ د بی وسه او مومن ملت پرخلاف د دښمنی هڅې او اقدامات تر بل هر وخت اضافه شوی دی د بندیزونو د عملی کیدو له تاریخ سره سم زموږ د غرنی هیواد په کوټ ګوټ کی د ژمی د یخنی او سړو توپانونو موسم شروع کیږی .

زموږ بی وسه خلك په دی موسم کی تودو جامو د سون او تودوخی لپاره محروقاتی توکیو لوازمو او موادو ته اړ دی .

یوی اوږدی وچکالی د وړکو کلیو او غرنیو کوچنیو ناوو بزګران سخت ځپلی دی او سږکال دافغانستان زراعتی پیداوار تقریبا د نیشت برابر وو . سږ کال زموږ هیواد له بین المللی ټولنی څخه د محروقاتو ادویاتو د زراعتی بندونو د پاکولو د بیاودانو په چارو کی د پراخی مرستی اوکمك هیله درلود ، خو د کمك او مرستی پر ځای د ملګرو ملتونو اداره د امریکا متحده ایالاتو د موسمی حالاتو او نورو طبیعی عواملو د سختیدلو په وجه ځینی داسی مصنوعی اقدامات کوی چی په افغانستان کی یوی لویی بشری فاجعی ته لمن وهی که په افغانستان کی یوه بشری فاجعه رامینځ ته شی نو مسئولیت به یې مستقیما د امریکا او ملګرو ملتونو په غاړه وی .

تر اوسه پوری هم د ملګرو ملتونو د مرستو وعدی صرف په اعلانونو او راډیویی خبری بلیټنونو کی لیدل کیدلی .

د ملګرو ملتونو د مخدره موادو ضد اداری په یوه اعلان کی وویل چی

افغانستان کی به سږ کال د تریاکو د کښت د مخنیوی لپاره ۱۵ ملیونه امریکایي ډالر لګوي خو په عمل کی یې تراوسه پوری نوموړی مبلغ څخه یو ملیون ډالر هم نه دی لګولی نوموړی پیسې صرف په اسلام آباد او د پاکستان په نورو ښارونو کی د نوموړی اداری د بدلمنیو مامورینو د عیش او نوش لپاره ولګیدلی د افغانستان خلک هیڅکله هم دملګرو ملتونو د امنیت شورای ته د امنیت شورای نوم او عنوان نه شی ورکولای په کوم ځی کی چی د ویټو د حق خنجر د څو هیوادونو په لاس کی دی او هغه هیوادونه هم دخپلو خلکو او نړیوالی ټولنی په وړاندی د بی شمیره جرایمو د ارتکاب اوږده او انکار نه منونکی سابقه لری

همدارنګه د اسلامی هیوادونو کنفرانس ته هم د اسلامی هیوادونو د کنفرانس د نوم او عنوان استحقاق حاصل نه دی .

په کوم کنفرانس کی چی د تاجکستان جمهور رئیس هم کښینی. نوموړی رئیس جمهور تر اوسه پوری ځان ته کمونیست وایې او د مسلمان له نوم څخه نفرت کوی د ترکیی حکومت خو په مستقیمه توګه اسلام د ترقی ضد قوت په توګه پیژنی او ټول دولتی اقدامات یې د سیکولرزم او لادینیت په لاره کی د حکومتی مسئولیت په توګه تعبیه کړی دی .

اوس به راشو د امنیت شورای نوی پریکړه لیک ته چی د افغانستان د اسلامی امارت پر قلمرو باندی د سختو شرایطو له مخی بندیزونه عملی کوي .

د امنیت د شورا دغه پریکړه لیک دملګرو ملتونو د منشور د اووم فصل له مخی ترتیب شوی دي .

دغه پریکړه لیک د. هغه پریکړه لیک په دوام ترتیب شوی دی چی دملګرو ملتونو د ۱۹۹۹ ع کال ۱۲۶۷ نمبر پریکړه لیک ګڼل کیږی .

نوی پریکړه لیک دزاړه پریکړه لیک په تعقیب له ځینو اضافی او نویو شرایطو سره زوړ پریکړه لیک په ۱۹۹۸ ع کال کی په کینیا او تانزانیا کی په امریکایي دیپلوماتیکو نماینده ګیو کی د بم له چاودونو وروسته تیار شوی وو .

په نوموړو چاودنو کی څه د پاسه ۲۲۵ تنه وژل شوی وو چی څو تنه یې امریکایي اتباع وو .

په نوی پریکړه لیک کی د افغانستان اسلامی امارت ته ۳۰ ورځی مهلت ورکړ شوی دی ترڅو په پریکړه لیک کی درج شوی غوښتنی ومنی .

د مطالبو او غوښتنو په ترځ کی غوښتل شوی دی چی د افغانستان اسلامی امارت دی د خپل حاکمیت په قلمرو کی ټولی تروریستی اډی بندی کړی . او یوه داسی اوضاع دی د باور وړ کړی چی د تروریزم او سبوتاژ هیڅ ډول هڅی ونه شی له بهر څخه راتلونکی تروریستان دی په خپله خاوره کی نه پریږدی او د افغانستان په قلمرو کی هستوګن په اصطلاح تروریستان دي ژر تر ژره بین المللی ټولنی ته د محاکمی لپاره وسپاری

د پریکړه لیک په ډیرو کرښو کی د اسامه بن لادن نوم ذکر شوی دي او د هغه پر خلاف د محاکمی غږ شوی دی .

د پریکړه لیک په دوهمه ماده کی غوښتنه شوی ده . چی د امنیت د شورا د ۱۹۹۹ ع کال د ۱۲۶۷ نمبر پریکړه لیک په تعقیب بین المللی ټولنه غوښتنه کوی چی اسامه بن لادن ژر تر ژره د محاکمی لپاره هغه هیواد ته وسپارل شی په کوم هیواد کی چی د ده پرخلاف د جرم دوسیه پرانیستل شوی ده .

یا دی یوه داسی هیواد ته وسپارل شی چی هغه بندی شی او د هغه پر خلاف د اقامه شوی جرم له مخی محاکمه وچلول شی.

د پریکړه لیک د ۸ مادی د سی (C) په پاراګراف کی ویل شوی دی .

چی غړی هیوادونه دالقاعده د تنظیم ټول غړی تر سخت تعقیب لاندی ونیسی او د دوی لخوا استعمالیدونکی پانګه دی په بانکونو کی مصادره کړي .

د القاعده په تنظیم پوری د اړوند غړو ټوله شته منی دی نه استعمالیږی بانکی صندوقونه دی له چلند څخه ولویږی او دا خبره دی باوری کړای شی چی له غیر منقولو جایدادونو او شتمنیو څخه د ګټی اخیستو ټولی لاری او چاری دي په ټپه ودریږي .

په پریکړه لیک کی په ځینو سیمه ایزو نومونو باندی د نښانی خاصی دایری راښکل شوی دی دغه سیمه ایز نومونه څو ځله تکرار شوی دی

خو تفصیلات یې د پریکړه لیک په متن کی نه دی شامل شوي

اما ژمنه شوی ده چی د غړو هیوادونو ته به په دی هکله تفصیلات او معلومات ورکول کیږی

منابع وایې چی په دغو سیمو کی د کابل د قرغه . د کابل ښار د ګارنیزیون د قوماندانی. حربی پوهنتون او ریشخور سیمی شاملی دی .

دوهمه خاصه علاقه چی نوم یې په پریکړه لیک په ځینو مادو کی راغی د کندهار د ښار هغه سیمه ده چیرته چی د امیرالمومنین جهادی مدرسه موقعیت

لري او دوهمه خاصه سيمه هوايي ډګرته ورڅيرمه د مجاهدينو هغه قرارګاه ده چې د افغانستان اسلامي امارت يې تمويلوي .

په پريکړه ليك كي غوښتنه شوي ده چې دغه پوځي مرکزونه دي وتړل شي او يا دي د ملګرو ملتونو د غړو هيوادونو له باوري منابعو څخه دغه خبره تصديق شي چې په نوموړو ځايونو کي د ترويزم او سبوتاژ لپاره دروزني ټول فعاليتونه په ټپه دريدلي دي .

د افغانستان اسلامي امارت د خپل هيواد په وړاندې د ملګرو ملتونو له سياستونو مخکي هم ناراضه وو او اوس هم دغه سياستونه د خپلو خلکو دروا ګټو پر خلاف د ناروا فعاليتونو په توګه يادوي .

په افغانستان کي د امريکا د متحده ايالاتو د مستقيمو لاس وهنو مخه له پخوا څخه ډپ شوي ده اوس د امريکا حکومت غواړي چې د ملګرو ملتونو تر عنوان لاندي د لاس وهنو سياست ته دوام وزکړي .

د افغانستان اسلامي امارت له پخوا څخه دا خبره څو ځله په ډاګه کړي ده چې د ملګرو ملتونو مربوطي اداري د واشنګټن او نيويارك لپاره د جاسوسي په کارونو بوختي دي. څه موده مخکي د افغانستان اسلامي امارت کوشش وکړ چې خپل هيواد د ازاد تجارت له لارې له اوسني اقتصادي کړکيچ څخه وباسي خونوي بنديزونه شايد د افغانستان د همدغي هڅي د شنډيدو لپاره يو استعماري چال وي .

فعلا چې د بنديزونو د نافذيدو لپاره صرف دوي ورځي وخت لاشته د ملګرو ملتونو هغه مامورين چې اروپايي او امريکايي اتباع دي مخکي لازمونږ له هيواده وتلي دي او د مرستي د ۵۰ پنځوسو موسسو دفترونه تړل شوي .

په تير پريکړه ليك کي د افغانستان پر اسلامي امارت باندي تور لګيدلي وو چي ګويا په نړيواله سطحه د هيرينو ۷۵ فيصده برخه همدغه هيواد توليدوي خو له تير يوه کاله راهيسي په افغانستان کي د ترياکو پر کښت باندي كلك بنديز لګيدلي دي او د دغه بنديز د موثريت په برخه کي د افغانستان ګاونډي هيواد ايران هم اعتراف کړي دي او د نړۍ نور هيوادونه هم د افغانستان دغه موثر او عملي قوت ته کوته په غاښ دي .

څه موده مخکي د ملګرو ملتونو د مخدراتو د کنترول پروګرام ډايرکټر " نيوارډکي " په يوه وينا کي وويل : افغانستان په خپل ټول قلمرو کي د ترياکو پر کښت باندي کټور بنديز لګولي دي او په ټول افغانستان کي حتي په يوه ګوښه غرني سيمه کي هم سږ کال چا ترياك نه دي کرلي .

دا د افغانستان د اسلامي امارت ډير غوره اداري طاقت دي چې نړيواله ټولنه يي بايدي قدر وکړي .

خو د نړيوالي ټولني لخوا زموږ بي وسو او بي کسو خلکو ته د انعام او اکرام پر ځاي د بنديزونو سوغاتونه راورسيدل .

## د نوي پريکړه ليك ځيني مادي

۱- ټول غړي هيوادونه دي د خپل حاکميت په قلمرو کي د افغانستان د اسلامي ( امارت چې په متن کي صرف طالبان ياد شوي دي ) ديپلوماتيکي اداري بندي کړي . په دغو ادارو او دفاترو کي د افغانستان د هوايي کرښي اريانا افغان هوائي شرکت دفترونه هم شامل دي .

۲- د اسامه د القاعده په تنظيم پوري د مربوطو انډيوالانو په هکله دي معلومات او ليستونه راټول شي او د بنديزونو د عملي کيدلو کوميټي ته دي وسپارل شي .

۳- غوښتنه کيږي چې طالبان دي د مخدره موادو پر توليد بنديز ولګوي ځکه چې له مخدره موادو څخه لاس ته راتلونکي پانګه د تروريزم او سبوتاژ لپاره استعماليږي .

۴- غوښتنه کيږي چې غړي هيوادونه د خپلو هوايي کرښو الوتني د افغانستان د اسلامي امارت د قلمرو پر ډګرونو باندي نه کينوي .

په دې هکله عاجلو الوتکو ته د کښيناستو اجازه د بنديزونو څانګړي کوميټه د بشري خواخوږۍ پر بنياد ورکوي .

۵- له غړو هيوادونو څخه په کلکه سره غوښتنه کيږي چي د طالبانو لوړ مسئول شخصيتونه د وزارتو معينان وزيران . مشاورين لوړ رتبه ملکي او پوځي مقامات په خپلو هيوادونو کي ونه مني او نه دي د هغوی لپاره سفري سهولتونه او دستاويزات برابروي .

۶- د بنديزونو د اعمال موده يو کال ده که په يوه کال کي د امنيت شوري مطمئنه شي چې د تروريزم او سبوتاژ لپاره په افغانستان کي ټولي اډې بندي دي نو بنديزونه به پورته شي او کنه تر دي د سختو بنديزونو چاره بايد وشي .

دا د پريکړه ليك فقط څو مادي وي پريکړه ليك پر انټرنيټ باندي ليدل کيږي .

( پای )

# ازبکستان او که زندانستان؟

محمد الله " نورستاني "

په ازبکستان کې د ازادۍ مخکې هم اسلامي بيداري وې مگر د ۸۰ لسيزې په وروستيو کې چې ولس مشر گورباچوف د خپلواکۍ پاليسي اعلان و کړ نو اسلامي بيداري د پرمختگ اخرې بريد ته ورسيدې ، مسلمانانو ته د دعوت ، د جوماتونو او د مدرسو د جوړولو يوه ښه زمينه مساعده شوه په مختلفو موضوع گانو باندې د قسماقسمو مطبوعاتو خپريدل شروع شو، تر ټولو لويه خبره دا چې په لکونو مسلمانان د خپل دين طرف ته ستانه شول ، مگر له بده مرغه د ازبکستان ولس مشر اسلام کريموف چې کله خپل قدم کېښود نو پر مسلمانانو د دائرې تنگول شروع شو، ۱۹۹۲-۱۹۹۵ د نوموړي ولس مشر پاليسي يو څه نرمه وه ليکن وروسته لومړي يې د ژوندانه خپل مخالفين ( د اسلام عالمان ) په محبسونو کې واچول ، لوی ، لوی ، عالمان يې هوي خوا تو تبنتول ، د اسلامي نهظت مشر په ۱۹۹۲ کې وتښتول شو ، شيخ عبدلولي ميرزا داندیجان ښار " الجامع " جومات خطيب په ۱۹۹۵ کې دازبك استخباراتو لخوا ، د تاشکند له هوايي ډگر څخه وتښتول شو ، د قزاقستان جمهوريت د دښتو په مينځ او د ارال بحر په غرب کې " جلق کلی " سره نږدې محبس کې ۲۵۰ کسه د ولس مشر د شخصي آمريت په وبال په محبس کې شپې صبا کوي ، د محبس د يو مامور په وينا : دلته هغه بنديان راوستلای شي کوم چې د هميشه بندي کولو وي ، تيرکال دلته ۱۸ کسانو ته دومره جسماني تکليف ورکړ شو تر دي چې هغوی له خپل ژوندانه لاسونه ووينځل ، او روزانه ۷۰ ځله د قامي ترانې په ويلو مجبورولای شي ، لاسونه يې تيټ سره تړلي له سهار څخه تر بيگا پوري په چوکيو کښينولی شي ، محبسينو ته حکم دی چې د ډوډۍ له خوړلو څخه وروسته فوراً په جگ اواز ووايي : چې مونږ پدی اسانتيا او خوراك باندی د خپل محترم ولس مشر اسلام کريموف شکر گذاره يو " په گرد هيواد کې د اسلام خوښوونکو اسيرانو تعداد له ۵۰ زرو څخه زيات دي ، او دغه شميره په منځنۍ اسيا کې د بشردحقوقو څخه د دفاع تنظيم چې مرکزی یا صدر دفتر يې په ماسکو کې دی تيار کړی چې برعکس ازبك حکومت صرف د ۲۰ زرو اسلامي فعالينو په بندي توب قائله دي ، په زندانو کې د محبسينو او د مړو تعداد مخ په زياتيدو ده په ۱۹۹۹ فبروری کې د ازبکستان په تاشکند کې له چاو دنی څخه وروسته په پراخه پيمانه نيول شروع شو ، کله چې حکومت د لومړی چاودنې پړه پر بنيادپرستانو واچوله مگر د بصيرت او د نظر خاوندانو په آند دا د ازبکستان د حکومت لخوا يوه دسيسوی چاودنه ده ، دليل يې دا دی چې هيڅ دولتي نفر هم پدی ونه وهل شو او نه خو هم له خپلی دندی څخه گوښه کړای شو او ولس مشر د داخله چارو وزير او دعامه امنيت کارکونکی نه محاسبه نه يې تهديد او نه هم ورباندی انتقاد وکړ او برعکس يې هغوی ته شاباسی ورکړ . او يو څو مياشتی وروسته د امنيت او د داخله چارو سخت زړه او بدترينو سلوکه کسانو ته د ښه کار کردگی مډالونه ورکړل .

**د اسلام دښمنی انتها :** په ازبکستان کښې ږيره او شرعي حجاب د سما منع دي او حکومت د مذهب ازادی يو قانون شايع کړی چې د هغه ( ۱۴ ) می مادی په موجب شخصي ا و غير حکومتی خايونه په جامي اغوستلو سره ( پرته د کوټ پتلون نه ) راتلل منع دی د دغه قانون د يوی بلی مادی له مخی ، اوس با حجابو او باسی و ته په ښونځيو او پوهنتونو کې زده کړه منع ده څنگه چې د ټولی باحجابی نجونی زده کونکی له تعليمی مرکزو څخه وايستلی شوی ددغه قانو پلی کوونکی پوليسان د جوماتونو په دروازو ودريږی او زده کونکي جومات ته له راتلو څخه منع کوی ، متعلمينو ته دلمانځه او قران يادول هم ممنوع دی حجاب لرونکی نجونی له سړکونو څخه پوليسان محبس ته رسوی ليکن افسوس چې عيسوی راهبانی په ښار کښی له خپلی ځانگړی طاليو سره گرځی راگرځی ليکن مسلمانو ښځو ته دغه ازادی نشته بلکی بدورتښکار نيږی ، دوی رجعت خوښونکی او گمراهانی بللی شی او

مزید لعن او طعن پرې ویل کیږي ډیرو پرده لرونکو ښځو د مجبوریت له لاسه خپل ستر پرستي ، او ډیرو کم زړو مسلمانانو د ناځاپي تلاښیو له امله قرآن مجید له خپلو کورونو څخه ایستلي لدې عمله دي چي لولیسان عامو عربي کتابونو او قرآن پاك ترمینځ فرق نکوي کوم عربي کتاب چي د چا له کوره او یا له موټر څخه تر لاسه کړي هغه به له خپلې دندې څخه لاس وینځي او د هغه د بدبختیو شیبې شروع کیږي که څه هم دغه کتاب د " اسلام کریموف " د کوم تالیف عربي ژباړه وی

**د ظلم او جفا یو څو نمونې** : ازبك حکومت مکمل د " اسلام حامیانو " پسې رااخستي ، فرغاني داندیجان ښار یو اوسیدونکي نعمت کریموف د خپل ځوی مړی د حکومت څخه (۸) میاشتو له نیول کیدو څخه وروسته ترلاسه کړ، چې وربانديي ښکاره د وهلو ټکولو نښې نښانې وې او ډیرو نورو کورنیو هم دغسې د خپلو ځوانانو جسدونه ترلاسه کړي چې په هغوی د تشدد او د اذیت رسولو علامې واضح او ښکاره وی دلته مونږ یو څو مثالونه وړاندې کوو :

۱- فرحت الله عثمانوف : د تاشکند اوسیدونکې په ۱۹۹۹ جون کې ونیول شو او د تشدد په وجه په همدې میاشت کې وفات شو د غسل په وخت کې د هغه کوپړي او زامې د وهلو له لاسه ماتې وې

۲- حیات الله بابانوف : د اندیجان اوسیدونکي د نومبر په ۲۰مه په۱۹۹۵ کې ونیول شو او د مې په ۲۳ په ۱۹۹۹ د اذیت اوتکلیف رسولو له امله وفات شو .

۳- جلال الدین جمالوف : د اندیجان ښاري چې ۳۷ کاله عمر یې درلود له نیولو څخه څو ورځې وروسته په حق ورسید .

۴- محمدجمال انیوف : د اندیجان اوسیدونکي ۵۵ کلن ، د اسلام کریموف د نظامي محکمې لخوا ( چې د اسلام حامیانو د سرکوبه کولو لپاره جوړ کړي ) نوموړی مجاهد ته د فبروري په ۱۰ مه ۱۹۹۸ کې ۶ کاله حبس سزا ورکړل شوه مګر دغه مظلوم د ډیرو وهلو په وجه د فبروري په ۷مه په ۱۹۹۹ کې د شهادت لوړ مقام ته ورسید .

۵- ظولوف عالم جان : د اندیجان ښار استوګن کوم چې نوموړي ښار ډیر علما او فضلا وزیږول لیکن د کریموف د استبداد په مهال دغه ښار د شهیدانو ښار وګرځید او نوموړي ظولوف عالم د فبروري په ۱۰ مه ۱۹۹۹ د ماښام ۴ بجې دستګیر او د همدې شپې په ۸ بجې د نوموړي جسد د تشدد له لاسه غلبیل غلبیل کور ته ورسول شو .

۶- احمد جان طورخانوف : د فرغاني د عنعان ښار اوسیدونکي ته د مارچ په ۵مه ۱۹۹۹ کښې ۵نیم کاله حبس ورکړای شو او نوموړي مجاهد د جون په ۱۵مه ۱۹۹۹ کښې خپل ځان حقیقي مالك ته وسپاره .

۷- الوغ بیګ انوروف : دتاشکند استوګن ( جون ۱۹۹۹ ) ونیول شو او د جولای ۱۹۹۹ کې په شهادت ورسید .

۸- عظیموفجوراخان : د اندیجان اوسیدونکي د فبروري په ۲۲مه ۱۹۹۹ کې ونیول شو او د اپریل په ۱۷مه ۱۹۹۹ په محبس کې په حق ورسید

ازبکي نمرود خپل داخله وزیر زاکر الماتوف ته د تاشکند د بم چاودني په لومړي کلیزه کې دا وظیفه ورکړ چې په ازبکستان کې دی د اسلام پر خلاف نه ختمیدونکې جنګ پیل او له ازبکستان څخه دی د اسلام نوم اخستونکې ختم کړي ، د اسلام مذهبي اداره د حکومت تر کنترول لاندې ده کوم چې اسلام کریموف د خپلو شومو اهدافو لپاره استعمالوی هر کال د ازبکستان فقیه تبدیلولای شي د ازبکستان صفتي عبدالرشید بحراموف دحکومت د فشار له امله په ۱۹۹۹ کې په لوړ اسپیکر د اذان کولو بندیز ولګاوه او دلیل یې دا ورکړ چې د پیغمبر پاك په وخت لوړ اسپیکر نه و ، ازبك چارواکو یوازې د ازبکستان په حدود کې نه بلکه له ازبکستان څخه بهر هم د اسلامي تحریك د فعالینو پرخلاف خپل فعالیت تیز کړی ، د ازبك دولت دغوښتنې په اساس روس چارواکو ډیر مهاجر ونیول او د ازبك ظالمو چارواکو ته وسپارل د اوکراین او د ترکیې امنیتي موظفینو هم دغه حرکت وکړ حال دا چې دغه عمل د مهاجرو پر خلاف د موجوده بین المللی لوظنامو څخه ښکاره خلاف و .

یوه خواته یهودیت ساتندوی قوتونو او په غرب کې د بشري حقوقو تنظیمونو په ایران کې ونیول شول .

یهودانو په حق کې په بین المللي کچ په فعالیت بوخت دي او له بلې خوا د ازبك مسلمانانو د زرګونو شهیدانو او نیول شوی کسانو په باره کې هیڅ هم د احتجاج غږونه نه پورته کوی .

زمونږ د مسلمانانو دغه بی حسی به تر څو وی ؟

امن خوښونکي ازبك مسلمان قوم به تر څو د خپل ځان ، مال او د عیال په باره کښې ویرجن وی ؟

تر څو به د اسلام فدایان محبسونو کښې تشدد او اذیتونه برداشتوی ؟

څو پوری به د ایمان خاوندان د تشدد او د اذیت ښکار وی ؟

د ظلم او مطلق العنان چارواکو پر خلاف به ( اسلامي امت ) کله پاڅون کوی ؟

د ظلم دغه توره او اوږده شپه به کله سبا کیږی ؟

# چې همسا لرې الف نلري

عبدالله گل ريان

نوم**خوږ** ما د ښوونځي په دوره کې ( څلورمه هد ش لسبزه ) ليدلی او اوريدلی وو ، پوهی او شخصيت ته مي هغه وخت ، ذهني سترگي کړي شوې چې ما**م** له مروج . چوکاټي او معياري کتابونه څخه يو گام اوچت واخيست د کلونو په اوږدوکي يې نوم او د شخصيت تصوير زما د ذهن په کنج کې ددي لپاره پروت وو ترڅو يې مسمئ وگورم . حو د ژوند ناخوالو را څخه ليري ساتلی وو .

دا خل کابل ته په راتلو مي دکار په پروگرام کې د همداسي شخصيتونو ليدل او کتل کښلي وو . مرسته هم مينه وال صاحب را سره وکړه ، وخت مو سره وښود او په هغه وخت مو د هغه د کور لاره ونيوله . د ساعت ستنو د ورځي د لسو بجو مهال ته ځان رسولی وو چې موږ يې د کور دروازه د ليدلو په هيله ووهله . سپين ږيری سړی چې ځيري ، غړيدلو او بدني جوړښت يې د ۶۰ - ۷۰ کلونو د عمر نمايندگي کوله ، دروازي ته راغی ، په مينه يې روغبړ را سره وکړ ، ددوهم پوړ خوني ته يې لارښوونه راته وکړه . خوني ته په ورننوتلو مو سترگي په مجلو ، جريدو او کتابونو ولگيدلي . زما له خولې لمړی وتلي لفظ ، ( ماشاء الله ) وو .

په نورو ميزونو د ميلمنو لپاره ، د چايو ترموز او پيالي پرتې وي ، په ديوالونو ، انځورونه او ليکني ځوړندي وي . يوه پانه خو لا د افغانستان د ډير تير وخت په بيرغونو ډکه وه .

وروسته هغه ورته اشاره وکړه چې دا د کمپيوټر برکت دی کنه ددي بيرغونو پيداکول هم څه ساده خبره نده خو کمپيوټر دا کار خورا ژر کولای شي . زياته يې کړه : له ما سره يو وړوکی کمپيوټر دی چې (( ۲۵۰۰۰ )) پوښتنو ته ځواب **را**کوي . . .

له کښيناستلو او د چای په پيل کولو مي دا خبره هم پيل کړه چې : ما غوښتل تاسو ووينم د څنډ علت يو خو نوی کابل ته راغلی او بل مو يو سيمينار درلود . هغه وويل : طالبانو ډير څه کړي ، هيواد ته يې ډير څه راوړي دي . خو د يوې اداري لپاره يا تجربه لازمه ده او يا هم اداري فني مهارت . شرايطو او ناخوالو ، دې کسانو ته دا موقع نده ورکړي چې همدا څه ولري ، اوس ورته لنډه لاره د همداسي سيمينارونو دايريدل دي . . .

دا چې له موږ سره مطرح شوي او پخوا پيداشوي پوښتني نه وې ، نو يې خبري هر لورته خپرې وې . يوه موضوع د تمدنونو ياده شوه . ويې ويل : نن ايران او هند د پخوانيو تمدنونو پوله ټاکي ، هغه داسي چې وگوري ايراني تمدن تر کومه ځايه را غزيدلی وو ، او هندي تمدن تر کومه ځايه را رسيدلی . او ددې خبري معنی دا ده چې گواکي افغانستان هيڅ تمدني دوره نلري . اصلاً اريايي تمدن د افغانستان د بلخ په سيمه کې پيداشوي ، او وده يې کړي . گريکو بوديك تمدن هم دلته را منځته شوي . د کوشانيانو د لوی پاچا کنيشکا په زمانه کې اريايي امپراطوري تر هند و ايران ، منځنۍ اسيا او چين پوري خپره وه د سياست . اداري تمدن او هرڅه مرکز يې د بلخ ښار وو چې د همدې حيثيت په درلودلو په ام البلاد ( د ښارونو مور ) باندي ياد شو .

ام . مور او**ديته لفظ** له (( ادې )) سره اړيکي لري او قدامت افاده کوي . د پيداديانو لړۍ که څه هم پلازمينه يې د اوسني ايران د دامغان ښار وو خو هغوی قسماً افغاني اريايي پاچاهان وو . ( ۹ ۱۰۰ زره ) کاله وړاندي د اريايانو ټاټوبی ، تر امو ها خوا وو خو وروسته هغوی تر امو را تير شوي او بلخ يې مهم او لومړی تاريخي مرکز وو . له همدې ځايه بيا د هند او ايران په لور خوځيدلي دي .

د ايران نوم د رضاشاه په وخت کې کښيښودل شو دا جز د ټول اريايي تمدن

میراث خور کیدلای نشي .

د امان الله په وخت کې د ایران لپاره د ایران نوم ، افغانستان په رسمیت نه پیژانده. که اوس هم د بهرنیو چارو په وزارت کې او یا نور دولتي اسناد ، وکتل شي ، هلته د ایران لفظ نه لیدل کیږي . ایران په فارس باندي یاد شویدی . (فارس هم هغه کلیمه ده چې د پارسو د قبیلي ، چې یوه اریایی قبیله وه په ورتللو او هلته میشته کیدلو ، د هغې سیمي نوم شو .

په سیاسي اصطلاح کي دامیر او شاه ترمنځ څه توپیر نشته ، د ایران له شاه سره د اریایی میراث د خپلولو په سیالي کې ، امان الله خان په (۱۳۰۶ هـ ش) کال خپل ځان (( شاه )) وباله او د امیر نوم یي بدل کړ .

دا خبره چې افغانستان د ایران په فلات کي راځي ، سمه نده بلکي دا سیمه اریا ویجه بلله کیدله او پدې لفظ کې سره ګډون لري . ویجه کلیمه اوس هم د کندهار په سیمه او لهجه کې د اویجه یا د خدای په ویجه په لفظ کې خوندي ده . .

د ژبو په هکله هم هغه وویل : موږ او ایران د تمدن په څیر په ژبو کې هم بیلوالی لرو . د اوپایی ژبو یو ښاخ هلته قدامت لري ، خو دا بله څانګه یې لکه ، پښتو ، دري ، سغدي او . . . دلته قدامت لري چې دواړه ښاخونه مستقل دي . د ایران او توران ، اریانا او تورانا په کلیمو یې هم رڼا واچوله او ویې ویل : دلته په ( شاهنامه کي ) ایران د ا ( اریانا ) په معنی استعمال شویدي .

. تورانا ، تور ، توری الفاظ اوس هم په پښتو کې شته او هغه وخت یوه اریایی قبیله داسي په تورانا ونومول شوه . چې : کله زردشت ( سپین لمنی ) د پیغمبري دعوه وکړه ، هغه وخت په بلخ کې د اریایی قبایلو ، دوه مشران وو ، یو ((ګشتاسپ)) او بل ((ارجاسپ)) ګشتاسپ بلنه ومنله او ارجاسپ مخالفت وکړ . همدا مخالفت ترجګړي ورسید او د اریانا او تورانا په نومونو بیلوالی پکښي راغی . نن هم په پښتنو کې په سپین ګوند او تورګوند ځیني خلك نومول کیږي او دا څه نژادي نومونه ندي . بلکي فکري او عقیدتي بیلوالی دی . ان دا چې په یوه قبیله کې دواړه ګوندونه موجود دي . عجیبه دا ده چې څه پښتانه ( په پاړه چنار کي ) اقل تشیع دي د اکثریت په مقابل کې نن هم (( توري ) بلل کیږي .

د هغه په خبرو کې دا هم را ته ښکاره شوه چې پخواني سیستي قبایل ، اریایی قبایل دي . کوشانیان او یفتلیان یې نمونې دي اوسني سیستان ( پخوانی ساکستان ، سجستان ) همدي قبایلو ته منسوب ځای دی . سهاك ، سهاك زی هم سیستي قبایلو ته منوسب الفاظ دی . همدا قبایل تر هند پوري رسیدلي ، ان دا چې نن جاپانیان ، بودا ته د ساکانو لاړښود وایي . . زما د یوې پوښتني په وضاحت کې هغه وویل : دا خبره چې غلجي پښتانه ، ترکي خلج دي ، هیڅ اصل نلري ، ځکه همدا پښتانه تر ترکانو پخوا همدلته استوګن وو ، ترکي سلجوقي قبایل لومړی ځل د سلطان محمود په وخت کې د افغانستان سیمو کې میشته وو د غلجي په لفظ کې هم تیروتنه شویده .

دلته غلجي او په هند کې خلجي لیکل کیږي ، سمه لیکنه یې غرځي دي . د غرجستان کلیمه یې هم له غور ، غر ، غرځي او غرځوی سره وتړله . د کسی غره په هکله یې وویل : ددې غره تاریخي یادونه دومره وړه سیمه نده . بلکي له اټکه تر هندوکش پوري د غرونو سلسلي د کسي په نوم یادیږي .

د هزاره کلیمه د مغلي منګ د توري ژباړه ده ، د چنګیز د راتګ په وخت کې له غور څخه تر بامیانو پوري په همدې غرنیو سیمو کې ، پښتانه اوسیدل چنګیزیانو سره یې سختي جګړي وکړي او د چنګیز لمسی یې هم دلته وواژه . چنګیز وروسته ډیره مرګ ژوبله وکړه او بیا یې خپل (( منګونه )) یعني زرکسیز کنډکونه همدلته او نورو ځایونو کې میشته کړل . همدا مغولي منګونه په هزاره ( زرکسیز ) وژباړل شول . د پخوانی تاریخ په هکله هغه د دوو سیمینارونو وینا هم وکړه . یوه د ایرانیانو له لوري د پخوانی تمدنونو په هکله او بل په تاجکستان کې د (( اوستا )) د ژبي په باره کې (( او دا هغه هڅي دی .

د نورو خبرو په هکله هغه د پښتو له سوچه کولو سره هم مینه ونه ښودله ، ویې ویل : پښتو د قوم ژبه ده او باید قوم ورباندي وپوهیږي . خو دومره سوچه کول لکه ، دي کسانو ( څو نومونه یې واخیستل ) چې متي یې ورپسي رانغښتي دي ، پښتو ژبه تجریدکوي زیاته یې کړه ، انساني فطرت داسي جوړ دی چې هیڅ تحمیل او جبر نه مني پښتو که سوچه کیږي هم ، په تدریج دی دا کار وشي ، څو یی خلګ داالفاظ خپل کړي . خو د نویو لغاتو مخنیوی هم ضرور دی . لهجي باید ثبت شي ، د نویو لغاتو لپاره که موخپل څه نلرل بیا باید پردي ومنو . موږ د اسلام په پنځو بناوو کې د لمانځه او روژې توری درلودل . د هغوی

ژباړه : عصمت قانع

# څو ورځې په افغانستان کې



پر لاره امنیتي ګزمي ودرولو او پوښتنې یې راڅخه پیل کړې ډریور خوارکي ډیر کوشش وکړ چې پولیس وپوهوي چې دا حکومتي میلمانه دي خو پولیسو ځان نه پوهاوه په موږ پسې له شاه د امارت یو امنیتي قوماندان راغی او پولیسو ته یې امر وکړ . د امارت رسمي میلمانه دي پرې یې ږده موږ سیده د قوماندان خلیل کورته ولاړو

قوماندان خلیل ، ډاکتر احسان او ډاکتر جاوید موږ ته تود هرکلی ووایه . قوماندان خلیل وویل موږ مو ډیر اوږد انتظار وکړ او حتی ډوډۍ مو در څخه وخوړه زموږ د خلکو متل دی چې وايي د ناوخته میلمانه ګیله له خانه وي .

دستر خوان لاغوړیدلی وو پر غوړیدلي دسترخوان باندې یې ډوډۍ واچوله ډوډۍ ډیره مکلفه وه زموږ هیئت له ډوډۍ خوړلو وروسته بیرته سپین زرته ولاړ خو موږ څو تنه پاتې شولو ځکه چې په سپین زرکې د کوټو کموالي محسوس شوی وو .

خو زموږ جامې د دوړو او خاورو په وجه ښه خیرنې شوې وې . چې ونه لمبیدو نو ټوله شپه مو خوب ونه کړ سهار مو لمونځ د کوڅې په جوماتکې ادا کړ خورا زیات لمونځ غاړي جومات ته راغلي وو سهار چې له جومات راووتو نو سوالګرو ښځو د جومات مخه بنده کړې وه زښته زیات مې زړه پر وسوځید خو چاره څه وه ؟

وزیر اکبرخان مینه په نوي سلیقه جوړه شوې ده د کوڅو واټونه پراخ او د لیدلو وړ وو .

وزیر اکبرخان د افغانانو د یوه قهرمان نوم دی چې انګریزان یې په کابل کې له یوې شرمیدلې ماتې سره مخامخ کړي وو .

سهار مې چې قوماندان خلیل ولید نو مې ورته وویل هوټل ته څو ترڅو جامې بدلې کړو او ولاړو .

قوماندان صاحب هم سمدستي هوټل ته ولیږلو د هوټل په یوه کوټه کې ځای پر ځای شوو جامې مې بدلې کړې او ځان مې هم پریوللو .

کله چې له صفایي فارغ شوو نو د هوټل په څلرم منزل کې ناشتې ته ورپورته شوو ناشته ښه ناشته وه چې میز ته کښیناستو حاجي ابراهیم هم راغی لومړی یې له اسلم ترین او حاجي نعیم صاحب سره روغبړ وکړ او بیا یې موږ ټول په غیږ کې ونیولو .

**د ناشتې پر میز د سرحداتو له وزیر سره کتنه**

حاجي ابراهیم صاحب وویل چې د اسلام د بشپړ پرتم " جامع شان اسلام " موسسې د جهاد په وخت کې له موږ سره نه هیریدونکې کومک کړی دی موږ به د ورونو همغه خلوص مینه سخا جوادي اومؤمنانه متانت هیڅکله هیر نه کړو .

خو له هغه وروسته موږ ته اندیښنه پیدا شوه چې ګنې تاسې موږ هیر کړې یو . نن چې زه تاسې له نږدې ګورم زیات خوشحالیږم .

زموږ هیله دا ده لکه څنګه چې تاسو په جهاد کې ښه ونډه واخستله همداسې به له موږ سره زموږ د هیواد په بیا جوړونه کې پوره ونډه اخلې .

په جواب کې اسلم ترین صاحب وویل :

چې موږ ستاسې د هیواد له امنیتي نظم او ډسپلین څخه زیات متاثر شولو موږ حیران یو چې تاسو اسلحه څرنګه راټوله کړه او د هیواد سر تاسري امنیت مو څرنګه تامین کړ .

حاجي ابراهیم وویل : چې له کندهاره تر کابله پوري مجاهدینو له جنګ او جګړې پرته خپله اسلحه طالبانو ته تسلیم کړه دا د هغه اعتماد او باور یوه ښه بیلګه ده چې افغان مؤمن ملت یې د افغانستان د اسلامي امارت پر حکومت لري د کابل په شاوخواکې چې د طالبانو پر خلاف څوك وجنګیږل هغه ټول د پخواني کمونیست حکومت خلقي او پرچمي پوځونه وو دا ټول پوځونه د مسعود په کمپ کې سره راټول شول چې تر اوسه پوري لا د امارت پر خلاف د روس او ډهلي په لمسون جنګیږي .

د جمعې په ورځ د دستمبر اوله ورځ وه اوپه دې ورځ په افغانستان کې رسمي رخصتي وه یعنې جمعه وه .

له همدې امله موږ له دولتي مقاماتو سره د لیدنو او کتنو پروګرام نه درلود .

حاجي ابراهیم صاحب راته وویل چې لومړی کابل وګوري بیا به د پل خشتي په جومات کې د جمعې لمونځ وکړو او له هغه وروسته به بګرام ته ولاړ شو .

چیرته چې د امارتي او باغي قواو ترمینځ د جګړې محاذ پرانیستل شوی دی .

تقریباً د سهار لس بجې وې چې زموږ هیئت د حاجي ابراهیم صاحب په مشرۍ د کابل ښار لیدلو ته روان شو .

تر اوسه پوري چې ما د کابل کومې برخې لیدلې وې هلته دوراني او ویجاړي ښېي ښاني دومره زیاتي نه وې .

ما ډاکتر سعید صاحب ته وویل چې اخبارونو خو دنیا ته داسې ورښودله ګنې کابل ټول کنډواله شوی دی دلته خو د کنډوالو هیڅ ډول اثرات او اغیزې نه ښکاري .

زما خبرې لا خلاصې شوې نه وې چې موټر مو د کنډوالو په واټ ور ننوت هرې خواته سوځل شوي تعمیرونه رنګ رنګ کورونه وراني ویجاړې فابریکې مات شوي سرکونه په نظر راتلل او سوځیدلي سیمې هم ورسره غځیدلې .

زموږ موټر له کنډوالو څخه تیر شو او یوې لوړې غرنۍسیمې ته ورسید چیرته چې له هغه ځایه ټول کابل معلومیدلو . د کابل ټوله ناوه د یوې پیالې په څیر راته ښکاریده .

حاجي ابراهیم صاحب راته وویل :

هاغه سوځیدلې ماڼۍ د چهل ستون ماڼۍ ده او دا شاوخوا سیمه هم د چهل ستون په نامه یادیږي پر دې ځای د حکمتیار تسلط وو چې له همدغې نقطې څخه به یې کابل په راکټونو ویشتلو هاغه تخنیکوم دی هاغه دارالامان دي دا ټولې منطقې د یوې ویرونکې تباهۍ بیلابیل تصویرونه وو . هر سوځل شوی تعمیر د عبرت یو بیل داستان وو ، دا ټولې ورانۍ او ویجاړې د کورنۍ جګړې په وخت کې شوې وي چې یوې خواته یې حکمتیار وو بلې خواته یې شیعه حزب وحدت او بل طرف ته رباني سیاف او مسعود وو .

صرف د کابل د شهر نو خیرخانې او وزیراکبرخان سیمې لږ څه سمې وې نور نو ټول کابل په سلو کې ۷۵٪ - ۸۰٪ کنډر کنډر پروت وو .

حاجي ابراهیم غره ته اشاره وکړه او راته ویې ویل دا دکابل دیوال دی .

دا دیوال افغانستان ته د اسلام تر راتګ له مخه تعمیر شوی وو چې اوس یې یوازې کنډوالې پاتې دي .

زموږ موټر له بیلابیلو کنډواله شویو واټونو کوڅواو لارو څخه بلا خره د انترکانتیننتال هوټل مخې ته راورسید هوټل د کابل د ښار پر لوړه او حاکم نقطه باندې ودان شوی دی چې خورا ښکلی او په زړه پوري تفریحي موقعیت لري د هوټل په شاوخوا سیمو کې اوس هم ماینونه ځای په ځای دي چې د ماین پاکولو موسسې یې رایستلو او خنثی کولو په کار بوختې دي.د کانتیننتال ته ور څیرمه د ګڼوونو په مینځ کې د شنو ګونبزو یوه ښکلې ودانۍ ده چې دغه ودانۍ د هوټل کابل په نوم

یادیده او اوس مجاهدینو قرارګاه پکښې جوړه کړې، که څه هم اوس د کابل هوټل د ښار په مینځ کې د افغانستان بانك مخامخ ودان شوی دی خو د باغ بالا تاریخي ودانۍ د امیر حبیب الله په وخت کې د کابل هوټل په نوم یادیدله ،چې له باغ بالا راستون شو نو د حاجي محمد ابراهیم کورته راغلو ډوډۍ لانه وه تیاره ملګرو پریکړه وکړه چې ډوډۍ به تر لمانځه وروسته خورو .

**د پل خشتي جومات :**

موږ د جمعې دلمانځه لپاره د پل خشتي جومات ته ورغلو دا جومات د مرکزي اسیا له ډیرو مشهورو جوماتونو څخه دي . جومات په ډیره ښکلې اعلی او ظریفه سلیقه جوړ شوی دي د اسلامي تعمیر د هنرونو د کاشي او میناتوري نمونې پکښې له ورایه تر سترګو کیږي .

جومات د کابل د سیند په غاړه ودان شوی دي ، د وچکالۍ په وجه د افغان وطن د اوبو طبیعي زخیرې تقریباً وچې دي نو د کابل سیند هم وچ وو ، د کابل سیند همدومره او سورور او ژور وو لکه د لاهور ویاله چې ده کله چې مختار سلیم صاحب ماته وویل : دا د کابل سیند دی نو ما پرې وخندل او په ټوکه کې مې ورته وویل : ګوره هسې نه چې د کابل سیند ستا دا خبره واوري او په دې خبره دې د ځان توهین ونه ګالي په شربه ورسره واوړي .

د جومات د اوداسه ځای هم خورا عصري او ښه جوړ شوی دي لمونځ او حجاب تقریباً د افغانانو د کلتور په یوه نه جدا کیدونکې برخه باندې بدل شوی دي

کله چې اذآن وشي افغانان هرومرو ځان جوماتو ته رسوي د پل خشتي جومات تقریباً له هرراز لمونځ غاړو ډك وو یعنې ځوانان ، سپین ږیري تنکي ځوانان ماشومان ټول د جماعت پر وخت حاضر وو .

**د بګرام جبهه :**

چې د غرمې ډوډۍ مو وخوړله نو د بګرام د جبهې پر لور روان شو ، د بګرام هوایي ډګر د افغانستان د هوېي او مدافع هوایي ځواکونو تر ټولو مهم ډګر دی چې په ډیره پراخه ساحه کې د کابل شمال لورته ودان شوي دي ، د بګرام هوایي ډګر تقریباً له کابل څخه ۶۰ کیلومتره لیرې دي کوم سړك چې د بګرام پر لاره جوړ شوی خورا ښه سړك دی ویل کیږي چې ډاکتر نجیب الله دا سړك دخپل واك په زمانه کې جوړ کړ او اوس هم جوړ دی د حاجي محمد ابراهیم موټر تر موږ ټولو مخکې روان وو او نور موټر یو له بله څخه په ښایسته زیات واټن کې روان وو دا تکتیك له دې امله وو چې د دښمن د نا ببره برید پروخت کې ټول موټرۍ له مینځه ولاړ نه شي .

د افغانستان اسلامي امارت د کابل د دفاع لپاره څو امنیتي کمربندونه جوړ کړي دي او په ټولو کمربندونو کې د امارت پوځي ځواکونه تیار ولاړ دي له همدې امله دکابل دفاع ډیره ډاډمنه او په نظامي لحاظ په سلو کې سل کامیابه ده .

د بګرام د هوایي ډګر په پنځه کیلومترۍ کې زموږ ټول موټرونه ودریدل دلته د افغانستان د اسلامي امارت د پوځي قوا و قرارګاه وه .

د بګرام د هوایي ډګر یوی خواته طالبان دي او بل اړخ ته یې د باغیانو قوا وی پرتې وي

د سرحداتو وزیر موږ ته وویل چې د پنجشیر وادی له بګرام څخه تقریباً ۴۰ کیلو متره لرې ده .

ما له افغان پوځي مشر څخه پوښتنه وکړه څه فکر کوی چې د پنجشیر منطقه په څه وخت تصفیه کړی ؟

هغه وویل : تر اوسه پوری دقیق نشم ویلای چې څه وخت به پنجشیر له وسله والو باغیانو تصفیه شي .

ما بیا پوښتنه وکړه چې پر سالنګ باندې ولې د امارت قواوې خپل تسلط نه ټینګوي .

افغان پوځي وویل : د پنجشیر له تصفیې څخه پرته د سالنګ قبضه کول هیڅ ګټه نه لري ، د کابل او مزار شریف لویه لاره له سالنګ څخه تیریږي . خو د جهاد په ټول دوران کې مسعود روسي قواو ته په سالنګ کې د تګ راتګ اخلال رامینځ ته نه کړ بالاخره مسعود له روسي قواو سره رسمي اوربند هم لاس لیك کړ .

چې له بګرام څخه راغلو شپه مو په هوټل کې تیره کړه خو زموږ د سفر ځینې اندیوالان په همدې شپې د افغانستان د اسلامي امارت د استخباراتو له رئیس قاري رحمت

الله سره ملاقات ته ولاړ ، د ملاقات اساسي موضوع په فني څانګو کې د امارت له مقاماتو سره د مرستې د امکاناتو څېړنه وه .

**د سرحداتو په وزارت کې :**

د سپتمبر په دوهمه زموږ په پروګرام کې د سرحداتو له وزير سره خاصه کتنه شامله وه له هغه وروسته بيا د کابل پوهنتون ته تلو د کابل پوهنتون له ليدلو وروسته مو د طب د پوهنځي ليدنه په پروګرام کې وه . کله چې موږ د سرحداتو وزارت ته ورسيدو نو د دغه وزارت معين محترم عبدالحکيم منيب راسره روغبړ وکړ وروسته د سرحداتو د وزارت مامورينو زموږ هر کلی وکړ .

د سرحداتو د وزارت معين وويل : چې د افغانستان د اسلامي امارت په حکومت کې د سرحداتو وزارت وظيفه لري چې له سرحدي قبايلو سره حکومتي اړيکې د هيواد د رهبرۍ او قيادت په سطحه ټينګې کړي ، او په اضطراري حالت کې د سرحدي قبايلو مسلح ځوانان د ملي مليشا او پوځ په توګه په جنګي محاذونو کې پر لازمو وظايفو باندې وګماري .

شيخ محمد نعيم صاحب او محترم محمد ابرار صاحب په دې کتنه کې د سرحداتو وزارت د اداري امور ودښه سمبالښت په مقصد ديوه کمپيوټر سيټ د ورکولو اعلان وکړ زموږ لخوا وزارت ته وړانديز وړاندې شو . چې موږ په خپل بروکراتان د وزارت د دفتري او اداري امورو دسمبالښت لپاره درته راوليږو خو د وزارت لخوا دا پيشنهاد رد شو دوی وويل چې موږ غواړو په دې څانګه کې داسې کومک راسره وشي چې زموږ خپل افغاني پرسونل د اداري امورو لپاره دکورسونو د تدوير لپاره ورکړل شي .

**په کابل پوهنتون کې :**

چې د سرحداتو له وزارت څخه را فارغ شو نو د کابل پوهنتون لاره مو په مخه پسې واخسته .

ملا پيرمحمد روحاني دکابل پوهنتون رئيس زموږ هيئت ته ښه راغلاست ووايه ، د کابل پوهنتون د ښه راغلاست غونډې ته شيخ محمد نعيم صاحب زموږ د هيئت د سفر د اهدافو په هکله يو لنډه شان معلوماتي وينا واوروله .

د نعيم صاحب له وينا وروسته د کابل پوهنتون رئيس د هيئت راتګ ته خوشحالي څرګنده کړه اوپه خپله وينا کې يې وويل چې په افغانستان کې د تعليم لپاره دوه وزارتونه دي

۱- دلوړو او مسلکي تحصيلاتو وزارت

۲- د ښوونې او روزنې وزارت

روحاني صاحب وويل : چې کابل پوهنتون همدا اوس ۴۳۵۰ تنه محصلين لري د پوهنتون د استادانو شمير ۳۱۵ تنو ته رسيږي د محصلينو له جملې څخه ۳۴۵۰ تنه په ليليه توګه او باقي يې په نهاري توګه خپل عالي تحصيلات پر مخ بيايي .

د اسلامي امارت تر واکمنۍ مخکې په ليليو کې صرف ۸۰۰ تنه محصلين اوسيدل د ليليه محصلينو د خوراك اعاشې او هستوګنې ټول لګښتونه د امارت له خزانې څخه تموليږي .

د کابل پوهنتون رئيس وويل چې نوي محصلين د کانکور تر ازمويني وروسته منل کيږي .

اوس څه د پاسه ۸۰۰۰ "اته زره" تنه محصلين پوهنتون ته د کانکور ازموينه ورکوي ، پر کابل برسيره په مزار شريف ، ننګرهار ، هرات او کندهار کې هم پوهنتونونه شته .

د کورنۍ غمجنې جګړې په دوران کې کابل پوهنتون د شيعه حزب وحدت په لاس کې وو دوی چې څومره وراني کولای شوای هغومره وراني يې وکړه .

د پوهنتون ټول لابراتوارونه يې سوځلي لوټلي او وران کړي دي دکابل پوهنتون لوی کتابتون چې مشهور کتابتون وو هم د وحدت ټوپکي لنډه غرو ولوټل .

د پوهنتون د برېښنا سيستم يې هم بيخي ويجاړ کړی وو ټرانسپرمرونه يې د کباړ په ډول تری پلورلي وو .

شيخ محمد نعيم صاحب د پوهنتون رئيس ته د پوهنتون د برېښنا د نظام د بيرته فعاليت او پوهنتون ته د يوی مطبعي دوکولو په هکله مرسته اعلان کړه چې د کابل پوهنتون درئيس لخوا په کور ودانې سره ومنل شوه .

د کابل پوهنتون رئیس د یوې پوښتنې په ځواب کې وویل چې شاګردانو ته د اسلامي ثقافت په هکله لیکچر لازمي شوی دی په دغه لیکچر کې محصلینو ته د قرآني فهم عباداتو او حلال حرام په باره کې تدریس ورکول کیږي چې نتیجه یې خورا په زړه پورې او ښه ده .

موږ د پوهنتون کتابتون ته هم ولیدله چې کورنۍ جګړې خورا زیات تاوان ور رسولی وو د کتاب خانې له لیدلو وروسته د کرنې پوهنځي ته ولاړو . د پوهنځي مشر محمد اکبر پوپل صاحب ښه راغلاست راته ووایه دجګړې په وخت کې دا پوهنځی هم ترلې وه د عصري کرنې میکانیزه سامانونه جنګي لنډه غرو په بې رحمۍ سره لوټلي وو .

په ۱۹۹۵ کال د دغې پوهنځي کار بیا پیل شو د زراعت پوهنځي د تجربوي کرنې لپاره د ۶۳ هکتاره ځمکه لري په پوهنځي کې ۳۷۵ تنه محصلین په تحصیل بوخت دي

په کال کې سل تنه نور محصلین پر همدغه تعداد ورزیاتیږي د استادانو شمیر په دغه پوهنځي کې ۳۲ تنو ته رسیږي چې اکثره یې لوړ تحصیلات او ښه تجربوي مهارت او پوهه لري دغه پوهنځي د امریکا د متحده ایالاتو د حکومت په تخنیکي او مالي مرسته په عصري توګه جوړه شوې ده .

شیخ محمد نعیم صاحب د زراعت پوهنځي ته د دو ترکتورونو د مرستې اعلان وکړ چې د پوهنځي د تخنیکي چارو د مسئول لخوا دغه مرسته په ګورودانې سره ومنل شوه

د طب په پوهنځي کې چې د طب له پوهنځي څخه مولیدنه کوله نو تقریباً د ورځې یوولس بجې وې د کابل هوا د اګست د میاشتې په تیریدو سره بالکل ښه کیږي په روښانه غرمه کې د طب په پوهنځي کې وګرځیدو . د طب د پوهنځي مرستیال رئیس ډاکتر محمد عالم همدرد زموږ هرکلی وکړ . ډاکتر همدرد خپلې طبي زده کړې د پیښور پوهنتون د خیبر د طب په پوهنځي کې پشپړې کړې وې او خورا لایقه ډاکتر دي .

ډاکتر همدرد وویل چې پخوا به موږ د پوهنځي فارغانو ته د MD علمي سند ورکولو خو اوس مو دا سند په MBBS بدل کړی دي . د کابل د طب په پوهنځي کې د تحصیل دوره د ستاژ د دورې په ګډون اوه کاله ده د پوهنځي دتدریسي نصاب ژبې پښتو او انګریزي دي په پوهنځي کې د طبي پرسونل شمیر ۱۸۰ یو سل او اتیا تنه دي په دغه پرسونل کې اته تنه لایق پروفیسران هم شامل دي ښځه پروفیسره یوه هم نشته

د پوهنځي د محصلینو شمیر ۱۸۰۰ تنو ته رسیږي چې نجونې او هلکان دي .

تقریبا له دې جملې څخه ۳۰۰ محصلین نجونې دي چې پوهنځي ته د راتګ په وخت کې په بشپړه توګه حجاب کلک رعایت کوي .

په کابل کې څه د پاسه دیارلس امارتي روغتونونه دي او په ټول افغانستان کې د طب د پوهنځیو شمیر پنځو ته رسیږي د جګړې د معیوبینو لپاره ځانګړې طبي ځانګه وجود نه لري د پوهنځي کتابتون مو هم ولیدو . یو مسئول تن راته وویل چې د پوهنځي . کتابتون پخوا د [illegible] درلودل چې [illegible] وخت کې ټول [illegible] وسوځول شول .

د لابراتوار حالت هم ډیر خراب ارتیا ور روغتیایي تجربوي مواد بیخي په کې نه پیدا کیدل زموږ د هیئت طبي ډلې چې پر ډاکترانو مشتمله وه په روغتیایي ساحه کې له امارت سره د مرستو مختلف امکانات په ګوته کړل او د پوهنځي رئیس ته یې په بیلابیلو ځانګو کې د مرستې اوهمکارۍ ژمنه وکړه همدارنګه د طبي مرستو د روغتونونو فارمسي او کلینیکونو د وسایلو په هکله موږ د روغتیا له وزیر سره هم مفصله کتنه وکړه او د روغتیایي سیستم د بیرته احیا کیدو په ځانګه کې د بیلابیل پیشنهادونه تر غور او څیړنې لاندې ونیول شول .

نوربیا






ځلرمه برخه

له موږ نه مخکې په نړۍ کې داسې قومونه تير شوي دي چه هغوي په داسي وژونکو خيالاتو کې راګير شوي وو . هغوي د فطرت د قانون له زده کړې څخه مخونه ګرځولي وو . او د خداى " ج " د ټاکلو حدودو ماتول يې غوښتل . خو نتيجه يې دا شوه چه په ټولنه کې داسې غمونکي او تباه کونکي نتايج را منځته شول چه ورو ورو يې هغوي برباد کړل او داسې نوم او نښان يې ورك شو چه موږ يې له شتوالي څخه هم ناخبره يو د تاريخ فلسفي دا ډول تاريخي شواهد او تيري شوي پيښې د يوه علمي سند په توګه خوندي ساتلي دي چه د هغې له مخې ناشوني ده چه څوك دى د خيالي فلسفي په دروغجنو تبليغاتو وغولېږي .

پوهاند دوقاريني په انسائيکو پيډيا کې ليکي :

زموږ په زمانه کې چه د ښځو د خير ښيګڼې او د هغوي د اصلاح او سمون له پاره چه کوم غورځنګونه پيل شوي يقيناً چه دهغوي پايله به هم داسې وي او د دې عامي تجربې تصديق به کيږي انساني نوغي د نړۍ په هره برخه له ډيري مودې راهيسې په داسې ډول ټولنيز ژوند تر سره کاوه چه له دې ټولنې څخه هم ډير سپك او زليل و . چه د کوم حالت له کبله نن د ښځو په کړيدلي حالت اوښکې بهول کيږي . خو منځنيو پيړيو ( قرون وسطى ) د پرمخ تللو ګامونو ټولنې په تدريج سره لدې حالته څخه . اسيتلي او ورو ورو له پخواني ذلت او سپکاوي څخه پاکې شوې . ځکه د ټولنې فساد يو داسې عارضي حالت وو کوم چه د پخواني جاهليت له اغيزو څخه راپيدا شوي و . دا هغه زمانه وه چه په هغې کې د حاکم او محکوم توپير په څه عضوي پيښه باندې نه دبنا شوى ( يعنى لکه د نارينه او ښځې تعلق چه په هغوي کې عضوي اختلاف دى ) .

له دې ورسته د ښځې او نر د خپل منځي ټولنيزو تعلقاتو په اړه ليکي :

" خو د نارينه په وړاندې د ښځو اطاعت يو داسې شی دی چه د نورو ټولو خبرو پرخلاف وروستي حد نلري ، هغه په تدريج سره له ټولنيز اخلاقي پرمختګ سره سمون خوړلى شي . ځکه د دې تړاوسيخ د ښځې له هغه طبعي کمزورتيا سره دى چه د هغې مخنيوى او تدارك ناشونى دى . د ښځې دا بنځيزه لږ ځواکې د ( بيالوژۍ ) له اصولو او تجربو او د ورځنې ټولنيز ژوند له مشاهداتو څخه ښه ثابتيږي او داسې منل شوې ده چه له هغه څخه انکار کول له علمي اصولو انکار کول دي .

د بيالوژۍ علم د تشريحي او فزيالوژۍ اصولو په بنياد خورا په وضاحت سره وايي چه څارويو کې په ټولنيزه توګه او په انسانانو کې په ځانګړې توګه د ښځې بدني ترکيب د ماشومانو له اصلي حالت سره ډير زيات ورته والى لري او دا حالت په ښځه کې د نارينه په پرتله د عضوي ترکيب له لحاظه ډير کم دى . "

## ايا انسان کولاى شي چه په فطرت باندې برلاسى شي ؟ !

انساني نوغي د څو کمزورو او ذليلو وګړو او د اسمانو او ځمکو پيدا کونکي ( لوى څښتن ) د ټاکليو قوانينو په منځ کې يوه عجيبه جګړه

روانه ده . دا کمزوری انسان د هغې ابرخوانو د قوانینو هیڅ پروا نکوي هغو ته په سپکه سترګه ګوري او مخالفت ته یې بد وهلي ناست دي خو د فطرت د اصولو کلکې او پخې واکمنې په ټولو کائناتو احاطه کړې ده او هغه په خپلو اصولو ولاړ دی او د خپل حریف ( انسان ) سپین سترګي او زورونیا ته کټ مټ داسې په خندونې څیره ګوري لکه یو تجربه کار سپین ږیری چه یو تې رودونکي ماشوم وینې چه هغه د لمر له رڼا یې څخه انکار کوي .

دا کمزوري او د قدرت له رازونو بې خبره انسان د ښځې طبعي ضعف په خپلو مادي او معنوي کوښښونو سره لرې کول غواړي او د نارینه په وړاندې یې د روی خوفطرت په خپل قانون ( الرجال قوامون علی النساء ) باندې په کلکه سره ولاړ دی او خپل حریف ته یې د خپل کوښښ د ټول ارمان تر سره کولو موکه ورکړې ده .

په کائناتو کې یوې وړې زرې څخه نیولې تر یوه لویه مخلوقه پورې هیڅ شې هم د دې دعوې جرات نشي کولای چه دا کمزوري انسان به د فطرت په مقابله کې برلاسي ترلاسه کړي ایا څوك د یوې ګړۍ له پاره هم داسې یقین کولای شي چه ددې ضعیف انسان کوښښونه دې د فطرت د قانون واکمنې ته څه تاوان ورسوي څوك شته چې داسې یقین وکړي ؟ ایا څوك شته چې په داسې یقین کولو سره د خپل لیونتوب ثبوت ورکړي .

"فطرة الله التی فطر الناس علیها لا تبدیل لخلق الله"

( د میډم هیرکور ) د ښځو د ازادی د غورځنګ یوه وتلې څیره وه هغې د ښځو د حقوقو د ساتنې چیغه پورته کړه او نارینه وته یې اخطار ورکړ چه په نږدې کې هغه بریالی کیدونکې ده خو چه کله هغه له مشهور سوسیالیست پوهاند پرودون څخه دلیك په زریعه و پوښتل "چه د ښځو د حقوقو په هکله ستا څه رأیه ده ؟" نو نوموړي پوهاند یو سپړلی ځواب ولیکه او د هغې ټولې ادعا ګانې او د حقوقو د مساوات هڅې یې بیځایه وبللې او داسې یې ولیکل زما په انده ښځې د ازادی کوښښ کوې خو دا سپیره لیونتوب دی چه متاسفانه دا جنس پرې لګیا دی د ښځو دا علت د دې خبرې ښکاره ثبوت دی چه اوس په هغوی کې دخپل غزت پیژندلو . او په خانګړې توګه د خپلو کړو وړو سر ته رسولو ما ده بیخي پاتې نده" نوموړی سوسیالیست فلسفي په خپل ځوابي لیك کې د خپلې رایې له پاره ډیر پاخه او قناعت ښونکي دلائل راوړي او په پای کې یې خپله رایه په لنډ ډول داسې لیکلې :

"لنډه دا چه زه دې خبرې ته تیار یم چه په ښکاره شواهدو او تجربو سره ثابته کړم څرنګه چه ښځه له نارینه څخه ډیره کم زوري اولږ ځواکې ده همدا ډول په کارو باري نړۍ کې ، د اخلاقو په ډګر کې ، دعلم او فلسفې په ساحه کې، هم له نارینه څخه ډیره وروسته ده نو که چیرته په ټولنه کې د ښځې هغه اقتدار ترلاسه شي د کوم شي له پاره چه تاسو کوښښ کوئ ! او د نارینه په واکمنې کې برخه واخلي نواې زما خوږو ملګرو ! ښه پوه شی چه بیا به دښځې مامیله ( معامله ) له خپله حده ووزي او ښکاره خبره دا ده چه بیا به په لیرې والي او غلامۍ کې راګیر کیږي"

## تبصره

له تیرو شوي وینااو څخه دا خبره په ډاګه شوه چه ختیځ چه د ښځو په اړه کومه نظریه لري هغې ته ظلم ویل . ظلم او تیری ده . په ختیځ کې چه ښځو ته ناقصات العقل والدین ویل کیږي . نو دا ولي ظلم دی؟ ایا تاسو ونه لیدل چه د اروپا پوهان څوك د ښځې عقل د ماشوم سره تشبیه کوي . او څوك ښځه د انسان د لومړي او ناقص او نمونه بولي . تاسو وینئ چه د اروپا وتلیو او نامتو پوهانو د ښځې د بدني او دماغي کمزوري په اړه څه نظریې لري د اروپا د پوهانو پریکنده او غوڅو خبرو د ښځو د ازادي غوښتونکي یو پوه چې ادعا ګانې له خاورو سره خاوري کړي او دهغوی کوښښونه ( چه د ښځو د ازادی له پاره یې کوي) چې د تمدن او ټولنیز نظام له پاره وژونکي زهر وبلل او هغوی ته یې خواستونه وکړل چه دا هر څه چه کوي دا له فطرت سره جګړه ده او بریامو ناشونې ده او پته دې نه وي چه د کومو غربي پوهانو وینااوې مونږ رانقل کړې هغوی د اروپا منلی کسان دي او د اروپا د اوسني مترقي دوري له موسسینو څخه دي او خبري او تحقیقات یې پاخه او دکاني کړښې دي خو زمونږ پدې لیکنه یو انتقاد کیدې شي چه ځواب یې پوره تفصیل غوړای او اوس راځو په هغه انتقاد او ځواب باندې در سره ګړیږو .

پاته لري

# د جهاد په ډګر کې یوه سپېڅلې مېرمن

محمد طاهر احمد " کوهبندی "

د وړو کې اختر میاشت وه ، د مدینې منورې په کوڅو کې بیا یوه نري غوندې اوازه شوه ورو ورو دا اوازه خوریده دا چې خبره د اسلام ستر سالار صلی الله علیه وسلم ته ورسیده چې دا خل د یهودو په لمسون د مکې مشر کینو د لسو زرونه زیات لښکر را ټول کړی او هغې د مدینې منورې په لور روان شوي غواړي چې د اسلام په همدې مرکز یو لوی برید ترسره کړي دوی د خپلو مجهزو لښکرو په غرور دا فکر کاو چې دوی بریالی دي .

خو له بلې خوا د وحي په سیوري کښې لوی داعي صلی الله علیه وسلم ډاډه ښکاریدی څکه چې حق تل بریالی وی د الله تعالی نصرت او مرسته د دوی په برخه وی . آنحضرت صلی الله علیه وسلم صحابه کرام راوغوښتل او له مشورې نه وروسته یې یوه کړنلاره مشخصه کړه چې د مدینې چاپیره به یو خندق جوړوی چې له دریو څخه بیا تر څلورو مترو پورې پلن والی او ژوروالی ولری د دې کار لپاره پخپله آنحضرت صلی الله علیه وسلم متې راونغښتې ، صحابه کرامو هم به خورا میړانه د خندك په کیندلو کې برخه واخیسته . دغه مهال د مشرکینو لښکري هم د مدینې خوا وشا پولو ته رانژدې کیدلی . اخوا یو شمیر ښځینه صحابه کرام د انصارو په یوه کلاکې چې " قارع " نو میږه، سره راټولې شوي ، دا کلاد یهودو دبنی قریضه"د قبیلې د دیرو خوا ته نژدې ودانه شوی وه . د دې کلا د ساتنې لپاره حضرت حسان " رض " چې د اسلام د لومړنیو شاعرانو په کتار کې وتلی شاعر دی ، ګمارل شوی وو . چې وضعه یې خارله د بني قریزه یهودانو یو تصمیم درلود چې د مشرکینو په تائید په دې کلا چې دوی ته ورخیرمه وه ، یوه حمله وکړی او د دې یرغل پیلامه یې د یوه یهودی جاسوس په ورلیږلو پیل کړه چې وګوری هلته څومره څواك شته هغه یهودی جاسوس چې د کلا دیوالونو ته نژدې شرله وړاندې د کلا د بامه څخه پرې د یوې بهادري میرمنې سترګې ولګیدې د بامه څخه رابښکته شوه او د خیمې یوه لکړه یې راواخیسته او ناڅاپی یې پر هغه یهودی جاسوس داسې وار وکړ چې ځای پرځای بې وواژه . د هغه له مړکیدلو وروسته یې سرترې غوڅ کړ او د بام د سره یې د هغه یهودو خواته وروغورځاوو چې د حملې د تیاری لپاره د همدې جاسوس د بیرته ورتلو په انتظار سره جرګه وو دهغو په دې عمل سخت وویریدل او له هغه ځایه بې تیښته غوره کړه او هغوی د پلانونو ټولې ایرادې یې شنډې کړلې چې له همدې ځایه د مسلمانانو د فتحې پیلامه کیده او د مشرکینو په زړه کې د یهودو د ناکامۍ یو بل رعب پریوت . تاسو پوهیږئ چې دا د ستر جرأت او همت ښځینه څوك وه ؟! هو ! دا هغه سپېڅلې ، بهادره مجاهده میرمن وه چې دا احد د غزا پر مهال یې د شهیدانو او زخمیانو دخدمت او پالنې سره یې د خپل وروړسید الشهدا حضرت حمزه " رض " ټوټې ټوټې بدن راټولاوو او نورو ته به یې تسلی ورکوله . د هغې همت ، جرأت او شهامت د اسلامی تاریخ یو ځلانده برخه ده . د خندق د غزا پر وخت حضرت صفیه " رض " د ۵۸ کالو وه خو بیا یې هم په دومره لوی عمر کې خپل ژوند د جهاد په ډګر کې د کفارو په وړاندې تر هر څه غوره ګڼی او د اسلام نه دفاع یې د ژوند لمړی هدف و . هغه د جهاد سره سره د په تقوٰی عبادت او کورنی خدمت کې د مسلم امت لپاره یو رغنده مشال ده د دې تورو سره زما د ذهن په حاشیه کې د بحث لیکنه د وطن هغو میرمنو ته اوړی چې خپل څومره اسلامی او اخلاقی مسئولیتونه یې له پامه غورځولی او هېر کړی یې دي ایا له دوی نه حضرت عایشه ، حضرت خوله ، حضرت صفیه ، ام سلمه او نورې ... چې په علمی ، جهادی ، کورنی او نورو میدانونو کې یې عمده سابقه درلوده هیرې شوي ؟ .

هو! هغه میرمنې چې زموږ ډیر زلمیان یې د دې سپیڅلی غورځنګ لپاره پاللی خپل اسلامی ثقافت او عقیده یې د نورو لپاره هم درس شوی ، د وطن تاریخ یې خپل ویاړ ګڼی .

هو! زه منم چې دا وطن اوس هم د ملالۍ په څیر ډیرې میرمنې لرې ، دلته د شهید مور ته چې یوه نه بله ورځ د شهیدانو زامنو جنازې راځي هغه ورته ښه راغلی وایي او د دین په لار کې یې خپل ویاړ ګڼی څکه یې ورته جنازو ته سوغاتونه ویل . یاد هغه شهید مور چې د خپل یوازنی شهید زوی قبر ته دریږی او وایې : هو! زویه ! کاش ! ستا په څیر د لسګونو شهیدو زامنو قبرونو ته هم داسې فردیسه ولاړه وای ، لکه ستا یوازنی قبرته . ما د یو بل سپیڅلی مجاهد کیسه داسې اوریدلی : چې کله هغه د تحریك په لومړیو کې د لږ دمې لپاره د کور مخشوړنی ، مور یې له ورایه ورته داسې وایي : زویه ! ستا غوندی ډیر زلمیان د سنګر د تورو غرونو ترشا په لوړه اوتنده د غلیم په وړاندې مقاومت کوی ، ایا هغه کور ، ژوند او مندې نلری ؟ رښتیا چې زموږ د وطن د دې میندو دا ساده جملې دومره اغیزمنې وی چې ډیر زلمیان یې د جهاد په مانا پوه کړل او لاتورې نړی ته هم د جهاد تلقین کوی

پاتې

# نباتي پاڼي د غذا جوړولو ستره فابریکه ده

الحاج الخنیر شاه محمود بری

**برګ درختان سبز در نظر هوشیار ـــــ هر ورقش دفتریست معرفت کردګار**

د انسانانو آشنائی سه نباتاتو سره پخوانی تاریخ لری چی په لومړیو وختونو کې یې د خپلو اړتیا و د پوره کولو لپاره په ساده او غیر عملی توګه له هغه څخه ګټه اخسته. کوم وخت چی د نباتاتو د پوهنی علم پراختیا او پرمختګ وکړ هغه و چی انسانانو د خپلو تجربو په اساس باندی ډیری ښی طریقی حاصلی کړی تر څو نباتات یې تکثیر، نباتی نسلونه یې اصلاح او نباتات یې نړی ته د یوه وسیع او با ارزښته علم په توګه وروپیژندل موږ غواړو دلته د نباتات د پاڼی "برګ" هغه ارزښناکه دنده او حیاتی عملیه ( فوتوسنتیز) یا د غذا جوړولو عملیه تر څیړنی لاندی ونیسو تر څو خپل تاکلې هدف ته ورسیږو څکه زموږ مقصد د هغه په پیژندلو کی نغښتی دی چی هغه د خدای تعالی د قدرت : پیژند ګلوی یوه بیلګه ده.

یعنی په دومره کوچنی عضوه (پاڼه) کی د الله په اراده سره په کومه اندازه پټ حالت په سترګو لیدل کیږی مخکښی له دی چی پر اصلی موضوع باندی بحث وکړو لومړی باید نباتی حجره (ژونکه) او پاڼه وپیژنو څکه پاڼه او په مجموع کښی نبات له حجرو څخه جوړ او تشکیل شویدی.

له پخوا څخه پوهیږو چی د نباتاتو اساسی، وظیفوی او تکثری واحد حجره ده. په یوه حجره کی مختلف ساختمانونه وجود لری لکه حجروی دیوال، پلازمائي پرده، هسته، سایټو پلازم، پلاستیډونه، واکیول مایکوی ندریا، ګولجی جسمونه، رایبوسوم او داسی نور. د همدی موضوع په اړوند موږ غواړو پلاستیډونه وڅیړو.

پلاستیډونه: د نباتاتو هغه اساسی ساختمانونه چی د ټولو نباتاتو په حجرو (پاڼو، تنو، ریښو) پاتی شنو ځایو کی په واضیح ډول سره معلومیږی چی یو علت یې د هغوی د زیات شمیر موجودیت او بل یې نور ته انعکاس ورکول دي. د رنګ او وظیفی له رویه دری (۳) ډوله پلاستیډونه وجود لری.

الف: علوړو پلاست (شنه یا رنګین پلاستیدونه)

ب: کرومو پلاست (ژړ، نارنجی اوسره پلاستیدونه)

ج: لیکو پلاست (بی رنګه پلاستیدنه)

کلوردپلاست (Chloroplast) د پلاستیډ له مهمو ډولونه څخه شمیرل کیږی څکه د غذا جوړولو بشپړه عملیه سرته پکښی رسیږی. پیچلی جوړښت لری داخلی فضایي د لمیلا (Lamella) له پردو څخه ډکه کوی چی هره یوه شبکه یې د ګرانا (Grana) په نوم یادیږی

د (۲) ګرانا و ترمنځ غیری منظم جوړښتونه وجود لری چی ستروما (Stroma) ورته وایي. په کلورو پلاست کی شنه رنګی ژوندی مواد وجود لری چی د کلوروفیل (Chlorophyl) په نوم سره یادیږی کلوروفیل د (کلورس فیلن) یونانی کلمی څخه اخستل شویدی چی کلورس د شنی او فیلن و پاڼی ته وائي تحقیقاتو څرګنده کړیده چی کلوروفیل د کاروتینوئید (Carotinoids) سره یو ځای په ګرانا کی وجود لری. (کاروتینوئیل یو ډول شحم دی) په کلوروپلاست کی کلوروفیل په مختلفو شکلونو پیدا کیږی تر اوسه پوری نه (۹) ډوله کاوروفیل پیژندل شودی چی ډیر مهم یې د کلوروفیل (۹) ( $C_{55}H_{72}O_5N_4Mg$) کلوروفیل بی "B" ( $C_{55}H_{70}O_6N_4Mg$) څخه عبارت دي. کلوروفیل د مالیکولی ساختمان له نقطه نظره ډیر پیچلی چی تر سل (۱۰۰) زیات اټومونه لری. وهچوګلوبین ته ډیر ورته دی یوازنی توپیر یې له هغه سره دا دی چی کلوروفیل پخپل مرکز کی مګنیتم او هیموګلوبین پخپل مرکز کی اوسپنه لري. کلوروفیل په اوبو کی د حل قابلیت نه لری مګر د مالګو، تیزابو او القلیو له امله ډیر ژر تغیر خوری.

***نباتی پاڼه د نباتاتو د مهمی عضوی په توګه :***

پانه د نبات مهم غړی دی چې د تني ( ساقی ) له زخو یا بندکونو څخه انکشاف مومي او په عمومي توګه له ۳ برخو څخه جوړي دي .

الف : د پاڼي تیغه

ب : د پاڼي ډنډر

ج : د پاڼي هواره برخه

د یوې پاڼي ضخامت په عمومي توګه له یو ملی متر 1mm څخه لږ وي . د پاڼي طبقی ( ۳ ) اساسی سنجونه څخه جوړ دي .

الف : اپیدرمس ( Epidermis ) بشووی طبقه ورته وائي چې په پانو کی په دوو ۲ برخو پاني لوړ او کښته اپیدرمس باندی ویشل کیږي . کلوروپلاست نلري . له پروتو پلازم څخه یې مومی ( Wax ) مواد ترشح کیږي چې کیوتیکل ( Cutical ) ورته وائي او د پاڼي پورتنی سطح پوښي چې د نور ( روښنایي ) ته د داخلیدو اجازه ورکوی مګر د اوبو له ضایع کیدو څخه مخه نیسی .

ب : میزوفیل ( Mesophyl ) د پورتنی اپیدرمس په کښتنی برخه کی د پالیسډ ( Polisade ) په نوم انساج وجود لری . چې تر هغه لاندی بیا اسفنجی انساجو ځای نیولی دی نوموړی طبقی یو ځای د میزوفیل نسج په نوم یادیږي د نیوفیل تر نسج وروسته کښتنی اپیدرمس وجود لری . د میزوفیل انساج شین رنګ لری چې د ضیائي‌ترکیب عملیه همدلته صورت نیسی . کښتنی اپیدرمس د ساتونکو حجرو ( Gard cells ) په نامه یو شمیر زیاتی حجری لری دوی ۲ ساتونکی حجری بیا د ستوما ( Stoma ) په نوم یو سوری لری چې جمع یې ستوماتا ده

ستوماتا له اسفنجی حجراتو سره مستقیمی اړیکی لری چې د غازاتو پاني اوکسیجن او کاربن دای اکساید تبادله سرته رسوی او هم د اوبو تبخیر کنترولوی .

ج : انتقالی انساج ( Vascullar Tissme ) دوه ډوله انتقالی انساج وجود لری چې یو یې د ژایلم Xylum دی وظیفه یې د خامو موادو یانی اوبو او منرالو نقلول ریښی څخه وپاڼی ته دي .

او بل یې فلویم Phloem دی چې پاخه مواد له پانو څخه د نبات د ساقی او نورو برخو ته انتقالوی . نوموړو انساجو د نبات ترافیکی ستم تشکیل کړیدي .

***<u>په پانو کی د غذا جوړولو یا ضیائي‌ترکیب عملیه</u>***

پاڼی دری ۳ مهمې دندی سرته رسوی چې هغه عبارت له فوتو سنتیزز ( ضیائي‌ترکیب ) ، تنفس او تبخیر څخه دي مونږ د خپلې تاکلی موضوع په اساس د غذا جوړولو ( ضیائي‌ترکیب ) یو عملیه څه بحث غواړو .

څرنګه چې د نباتاتو پاڼی پر ساقه باندی داسی تنظیم شویدی چې پنډی او نازکي سطحی لری نو کولای شی چې په ډیره اسانی سره هوا او د لمر روښنایي ( دکلوروفیل پواسطه ) جذب او د غذا جوړولو عملیه مخی ته بوزی .

که پاڼه د غذا جوړلو فابریکه وی نو خام مواد به یې د هوا کاربن دای اکساید ( $Co_2$ ) او د مځکی هغه اوبه وی چې د ریښی پواسطه جذب او زایلم د انساجو پواسطه وپانو ته انتقالیږی ، همدا ډول کلوروفیل ایی او بی او د لمر روښنایي هم د نوموړی عملي په ترسره کولو کی پوره ونډه لری . باید یادونه وشی چې په پانو کی یوه اندازه د کاربن دای اکساید غاز د تنفسی عملی په نتیجه کی حاصلیږی او هم یوه پوره اندازه %3 په هوا کی وجود لری چې نبات ګټه څنی اخلی . که څه هم نوموړی غاز په خاوره کی وجود لری مګر د نبات د استفادی یا ګټی وړ نه وی .

د ضیائي‌ترکیب ( غذا جوړول ) عملیي تعریف او معادله داسی لنډ وو .

د دوو ۲ غیر عضوی ساده موادو پاني هوا له کاربن دای اکساید او مځکی له اوبو څخه د لمر روښنایي کلوروفیل ایی وبی د موجودیت په نتیجه کی مرکب عضوی مواد ( ګلوکوز ) او د ژوند غاز ( اوکسیجن ) حاصلیږی .

اوکسیجن + ( قند ) ګلوکوز

اوبه + کاربن دای اکساید

$C_6H_{12}O_6 + 6O_2$ د لمر روښنایي / کلوروفیل ( ار ) $6CO_2 + 12H_2O$

*<u>د ضیائي‌ترکیب ارزښت :</u>*

ضیائي ترکیب د غذا جوړولو یوه مهمه عملیه ده چې بخپله د نباتاتو . انسانانو او حیواناتو د ژوندی پاتی کیدو لپاره په مستقیم او غیر مستقیم ډول مهم رول لري . چې په لاندی ډول واضیح کیږی .

۱ - د حاصل شوی ګلوکوز ( قند ) څخه نباتات مختلف مرکبونه لکه پروتین ، نوکلیك اسید ، شحمونه او نور جوړ دی چې ورسته بیا د ذخیروی غړوته انتقالیږی .

۲- اوکسیجن چې د ژوندانه له مهمو عناصرو څخه ګڼل کیږی په همدی عملیه کی حاصلیږی .

۳- کاربن دای اکساید چې یو زهری غاز دی د نوموړی عملیی پواسطه په قند باندی بدلیږی .

۴- ټول ژوندی موجودات له کیمیاوی انرژی څخه ګټه اخلی . نوموړی عملیه ده چې په وسیله یې نوری انرژی په کیمیاوی انرژی سره بدلولای شی .

۵- که نوموړی عملیه نه وای نو د نړی پرمخ به اوبه ډیری شوی وای حال دا چې د فوتوسنتیزز پواسطه په کار اچول کیږی دا چې قند په کوم ترتیب حاصلیږی یو لړ کیمیاوی تعاملونه صورت نیسی چې لیکل یې د چاپ لپاره ستونځی جوړوی

پاړي

ل.ن.ک




# د انسانانو په خوړو کې د شیدو غذائي ارزښت





شیدې د اوبو ، معدني موادو ، پروټین ، لکتوز ، ویتامینو ، غوړ او انزایمو د درلودلو له درکه مکمله غذا په تیره بیا کوچنیانو ته بلل کیږي.

دغوا شیدې په منځني توګه په سلو کې ۸۷.۲ اوبه – ۳.۹ غوړ – ۳.۲ پروټین - ۲.۸ شکره - ۵.۷ معدني مواد لري.

د ۷۵۰ ملي لیتره ( سي‌سي ) شیدو پروټین د ۱۲۰ ګرامه غوښو ـ ۵ دانو د چرګو هګیو ، ۶۶ ګرام پنیرو (پوخې) او د ۱۴ دانو وچې ډوډۍ سره معادل ( برابر ) دي.

د ۷۵۰ ملي لیتره ( سي‌سي ) شیدو خوړل د یو بالغ سړي د بدن ضروري امینو اسیدونه لکه لیوسین ، لایسین ، تریونین ، والین تول پوره کوي او هم په سلو کې ۵۰ د میتونین ) فینایل الانین او تریپتوفان امینو اسیدونه برابروي.

د شیدو شکره ګالکتوز د پوره انرژي درلودونکې ده چه د ورو کلمو د جدار په واسطه کرار ، کرار جذبیږي . کلسیم او فاسفورس چه د بدن د هډوکو په جوړولو کې اساسي او ضروري عنصرونه دي د نورو معدني موادو په پرتله په شیدو کې ډیر دي نو لدې کبله د کوچنیانو او نابالغه هلکانو د بدن د نمو او پخیدو لپاره د شیدو خوړل ضرور دي.

د علمي څیړنو په اساس د ۷۵۰ سي‌سي شیدوکلسیم د ۱۰ دانو غټو نارنجو ۲۲ دانو زردکو ۳۲ دانو هګیو او ۲۰ پونده د غوائي د غوښو د کلسیم په پرتله زیاد دي . شیدې علاوه پر کلسیم او فاسفورسو په کافي اندازه پوتاشیم ، اوسپنه ، مس ، منګنیز او مګنیشیم هم لري . په غوړو کې منحل ویتامینونه لکه D، E، A او د B خاندان او د C ویتامینونه او یوه کمه اندازه نیاسین ( ویتامین PP) هم په شیدو کې موجود دي.

د ۲۵۰ سي سي ( ملي لیتر ) خالصو شیدو خوړل په سلو کې ۸۲ کلسیم ، ۶۳ فاسفورس ، ۴۰ پروټین ، ۸۲ ویتامین B12 ، ۳۰ ویتامین A، ۲۲ ویتامین B1 ، ۹۹ ویتامین D.

او ۲۱ کالوري انرژي د یو ۱۳-۱۵ کلن هلک د بدن ورځنۍ ضرورت پوره کوي.

مختلف عوامل د شیدو کیفیت او کمیت متاثر کوي چه د هغې جملې څخه ارثي عوامل ، د شیدو ورکولو مرحلې ، د شیدو لوشلو طریقه او وختونه ، د غوښو کیدلو وخت او زمان ، سن ، د کال فصل ، د غذا ډول ، برابنه کیدل ، د چاپیریال د حرارت درجه ، د مرضونو ، افتونو او حشراتو موجودیت.

د پورتنیو عواملو په نظر کې نیولو سره ګرانو مالدارانو ته توصیه کیږي چه دغوا په انتخابولو کې د شیدو او غوښو په منظور ښه او اصلاح شوي نسل په پام کې ونیسي او د ساتلو او خوراک ورکولو به منظوریې لاندنی ټکې په نظر کې ونیسي.

مناسبه غذا لکه با کیفیته واښه ، شپشتي ، غلې دانې ، کنجاره ، د مولاس ( لبشکر ) خښتي ، منرال پوډر چه د شیدو په کیفیت او کمیت کې خاصه اغیزه لري ورکړل سي ، او ډیره پاملرنه وسي چه په خوړو کې ، میخونه ، د اوسپنې او ښیښو ټوټې او نور ورته شیان موجود نه وي ، په کافي اندازه اوبه د کال په هر موسم کې په منظم ډول سره په تیره بیا د شیدو ورکولو په مدت کې غوا ته ورکړل سي . ډول ، ډول مرضونه د حیواناتو د تولیدپر کیفیت او کمیت په مستقیمه توګه اثر ښندي او د هغوی تولیدات متاثره کوي . د مثال په توګه د شیدو ترکیبي اجزا د غولانځې او تیو د التهاب له کبله تغیر مومي ، دغه تغیرات د مرضونو د شدت سره مستقیمې اړیکې لري ، د شیدو قندي مواد کمیږي ، د پروټین نوعیت بدلون مومي ، شیدو PH د عادي حالت یعنې د ۴.۵ څخه ۷.۵ ته لوړیږي ، حیوان ژنګیږي او له منځه ځي ، نو ضرورده چه د ځینو مهلکو او خطرناکو مریضیو په مقابل کې حیوان د منظم واکسین کولو په واسطه ویقایه سي ، او د معدې ، کولمو ، سږو او اینې ( جګر ) پرازیتونه ئې پر معین وخت او زمان تداوي سي . د حیوان ځای وچ او نرم وي ، د طبیلي پاکول او د تازه هوا مهیا کول او لږ تر لږه په کال کې یو یا دوه ځلې دواپاشي کول ، د لوشلو مخکې په ملایمو اوبو د غولانځې او تیو پریمنځل ، د شیدو په پاک او تعقیم سوي لوښي کې یخې ساتل او انتقالول هغه اساسي ټکي دي چه هر محترم مالدار یې باید په پام کې ونیسي . د برابلی کیدلو په منظور باید مناسب سالم او اصلاح سوي نسل حیوان څخه په مستقیمه توګه او یا د مصنوعي القاح په واسطه کار واخستل سي.



# د بشر د حقوقو مبارز

عصمت قانع

رفیق توده ی صاحب یو خل بیا خپل لاسونه سره یو موټی کړل یوه لویه چیغه یې تر پړسیدلی چنغرك راووتله سترگو یې د چیغی له زوره اوښکی وکړی او بیا یې شعارونه ورکړل :

" مرگ بر امپریالیزم امریکا
مرگ بر نظام استثماری کاپیتالیزم
مرگ بر کمپ جنگ
زنده باد کمپ صلح و همزیستی مسالمت آمیز زحمت کشان جهان
رنجبران جهان متحد شوید او ......."

ملگری توده ی پر له پسی شعارونه ورکول او د ده مخی ته ولاړو حزبی ملگرو یې شعارونه په خپلو رسا او لوړو او ازونو بدرگه کول دوی سرې سرې نیکتایې گانی تړلی وې او له خپلو چیغو سره به یې توپونه هم وهل ملگری توده ی ځان ته د ځان مثال وو . لاسونه یې لکه وریښم داسی نرم او نازك وو د نویو مودونو او ډیسکو فیشنونو خورا ذوقی او لیوالـه وو . ویښتان یې په ډیره قیمتی شامپو مینځل او د ورځی یې دری ځلور ځله روسی ودکا په غړپ غړپ چښله د پتلون پایڅی یې نیم گزارتی او لویې وې د یخنکاك کمیس یې له گلداری عصری ښځینه ټوټی څخه گنډلی وو نیکټایی یې دومره نری وه لکه د مار ژبه بوټونه خو یې خاص د وردگانو د لرگی د کښا وو په ځیروو چی ده به کرو پلند ورته ویل :

کله چی روسانو پر افغانستان یرغل وکړ نو د توده ی هم پنځه گوتی تولی په غوړو کی ډوبی شوی سهار او ماښام روسی ودکا ورته رسیدله له روسی پوځی قطعاتو څخه یې د خنځیر کانسر شوی غوښه پریمانه راوړله او د جام د تروو شرابو په زور به یې هضموله .

ده د خلقیانو په وخت کی بریتونه دومره اوږده کړی وو چی تر غوږو پوری به یې تا وول خو اوس چی د تراشلو بریتونو واروو نو خپل بریتونه یې بیا ښه صفا سوتره تراشلی وو .

رفیق توده ي د شعارونو او نارو خورا استاذ وو په ځو چیغو کی به ټي هم امپریالیزم وو ژلو او هم به یې د توری ارتجاع کمبله د تل لپاره له افغانستان څخه ټوله کړه .

کارگرانو ، زیار ایستونکو او بزگرانو ته خو به یې په انی او فوری توگه بی طبقی او د فرد له استثماره څخه خلاصه غوړیدلی ټولنه جوړه کړه .

رفیق توده ی د همدی چیغو نارو فریادونو او شعارونو په برکت د روسی جنرالانو د نظرونو ملگری په توگه په گوته شو .

څه موده په پلیگون کی مقرر شو بی سواله اوبی خوابه به یې انسانان په بلدوزر تر خاورو لاندی کړل او چی د ورځی ماموریت به یې ختم شو نو د روسی و دکاله نشی سره به یې په مسته او خرابه ژبه وویل :

" نن می د انقلاب د لاري خنډونه د عدم شیلی ته واستول فیودالان کمپرا دوران . بورژوازان او ...... په دی انقلابی فضا کی د ژوند حق نه لري ".

خو هغه فیوډالان کمپرا دوران . بورژوازان او پانگه وال چی رفیق توده ی په ژوند تر خاورو لاندی کول ټول داسی خلك ووچی جامو به یې پینی اخیستی وی کلو ښي به یې په پلاستیك باندی لیم شوی وی په جیبونو کی به یې یو د سوره یاسین وړوکی جلد وو د ډیری لپاره به یوه وړه ړمنځ هم ورسره وه پر سرونو به یې د پراشوټ لنگوټی وی او د بدن اسکلیت به یې ډنگر غنم رنگه پوستکی پوښلی وو دا د توده ي د امپریالیزم گوډاگیان د توری ارتجاع تالی څټی او د نړیوال جنگی کمپ د ډالرو گمارل شوی انقلابی ضد عناصر وو .

توده ی څو کاله له جام او ساندویچ سره گوزاره وکړه او ښه په مزه کی یې وکړه توده ی د مجاهدینو په حکومت کی هم د جاه او جلال څښتن شو ده یو ځل بیا د خپل هنر سیکه وچلوله ده واکمنو ته د همدی شعارونو په کمال ځان ورننږدی کاوه .

" مرگ بر فاشیزم پشتون
مرگ بر قبیله سالاري "

په ډېر لږه موده کې رفیق توده ی د ارگ او دفاع وزارت لـه مخصوصو مشاورینو څخه وګڼل شو ده د پخوانی رژیم هغه افسران چې په ژبني لحاظ د تعصب په فساد ککړ وو د نوی حکومت د دفاع په مورچل کې و درول کال لاته وو تیر چې رفیق توده ی په خیرخانه کې یو جهادی غنډ جوړ کړ او د دفاع د وزارت د فوق العاده امر له مخې یې خصوصي بودجه ورته منظوره کړه

چې څرنګه به شپه شوه نو د توده ی په غنډ کې به د هارمونیم له نرمې نغمې سره د تبلو ډپ ډپ شروع شو وروسته به بیا ساز نور هم ګړندی شو چې اخیر ته به د ګونګرو ګانو په شرنګا شرنګ کې د پکول پوښو لنډه غرو له کوریایي جمپرونو له جیبونو څخه د پنځو زرو او لسوزرو روپو شنه شنه لوټونه د رقاصو د ملاقونو او طنازو نڅاګانو لپاره د آفرین په دود په هوا کې وشیندل شول د توده ی بیا هم پنځه ګوتې په غوړو کې ډوبې وې

توده ی اوس خپل شعارونه بدل کړی وو خریلي ږیره او بریتونه یې دومره پرې ایښې وو چې صرف مخ یې په تور وو د دوی د تورو عملونو په وجه دخیرخانې خلکو د حکومت پر واکمن پلوټ فورم باندې د شورای نظار پر ځای د شورای کفار نوم کیښود خو نه رفیق توده ی د خلکو په عکس العمل کې رای واهه او نه دده واکمن پلوټ فورم

د رفیق توده ی ظاهري هوډ هم بدل شوی وو ده اوس یو برګ دستمال په غاړه کې اچولی وو کرد چترالي پکول یې پرسر کاوه برګ پلنګی کوریایي جمپر به یې اغوست بوټونه یې هم هماغه اوږده عسکري بوټونه وو چې د دوی لوی آمرصاحب به په پښو کول او دوی دی لباس ته د جهادي لباس نوم ورکړی وو

توده ی د خپل خاص چالاکه ذهانت سکه داسې چلوله چې ګوته به دې په غاښ ورته نیولی وای مثلا ازبکان چې د امر صاحب به نه خوښیدل رفیق توده ی به خام کله ګان ورته ویل هزاره ګان به بیني پچک بلل او پښتانه خو هسې هم اوغان غول وو

پاره کمال او هنر هم لوی شی دی سړي ته په غره کې لاره ورکوي کله چې شورای نظار له کابله کډه بار کړه نو رفیق توده ی هم پنجشیر ته ولاړ له پنجشیر څخه یې پیښور ته رامخه کړه او په پیښور کې د بشر د حقوقو په یوه زنانه کمیسیون کې په کار وګمارل شو

اوس رفیق توده ی په دې فکر کې وو چې څرنګه د غرب د امپریالیزم و لمنې ته پناه یوسي خکه چې د ده د خنځیر کانسر شوی غوښه لـه شرابو سره یوځای ډیره خوښه وه .

بالاخره رفیق توده ی ته بله لاره پاتې نه شوه د ملګرو ملتونو د مهاجرینو د کمیشنرۍ مخصوصي ځانګې ته یې د سیاسي پناهندګۍ لپاره غوښتن لیک وسپاره کله چې یې د مخصوصي مرکې وخت راورسید نو رفیق توده ی یو ځل بیا له سرې نیکټایي سره په دریشۍ کې ولیدل شو .

کله چې د ملګرو ملتونو امریکایي مامور له ده څخه په بهر کې د سیاسي پناه د اړتیا په هکله تفصیل وغوښت نو ملګري توده ی په شمیرلو الفاظو کې څرګنده کړه :

" مه ده کابل مردګاو بودم طالبان ضد بشر ای کار را خلاف اسلام می دانند اونها فرمان مرګ مرا صادر نموده است . در پاکستان هم مرا تعقیب میکنند زندګی ما در خطر است باید در مورد کیس ما اقدام جدی شود"

کله چې د رفیق توده ی خبره دترجمان لخوا افسر ته ترجمه شوه نو افسر په خاصه مسکا ورته وویل "په افغانستان کې هم د ازاد سکس امکانات وو" توده ی وویل :

" ما برای چنین حقوق بشری هم مبارزه خود را ادامه میدهیم "

د ده دا خبره د افسر خوښه شوه هفته لا نه وه تیره شوی چې د توده ی سیاسي پناهنده ګی منظور شوه او دغرب د امپریالیزم غیږ ورته پناه ګاه شوه .

یوازې ما نه ډیرو خلکو یو ځل بیا توده ی د سی ان ان ( CNN )د تلوویزیون پر پرده ولید چې تاوده تاوده شعارونه یې ورکول

دا ځل توده ی د خپلو شعارونو محتوی او مضمون بدل کړی وو ده په خپلو شعارونو کې دا ځل پر فندامینتلزم او په افغانستان کې د بشر د حقوقو پر نه رعایت کوونکو باندې مرګ او مرده باد ویل . د ده د مصور تلویزیوني فلم له ختمیدو وروسته د تلویزیون نطاق وویل "د افغانستان د بشر د حقوقو یوه تکړه مبارز مستر توده ی نن د ملګرو ملتونو په وړاندې په یوه احتجاجیه مظاهره کې په نوموړی هیواد کې د بشر له حقوقو څخه د سرغړولو اقدامات په کلکه محکوم کړل "

ملا احمدالله "وثیق"

# د طالبانو پر خلاف د نړیوال استعمار یوون

په دې ورستیو کې د ملګرو ملتو د امنیت شورای د افغانستان پر اسلامي امارت باندي د نورو نویو بندیزونو اعلان کړی دی.

په دغو ظالمانه بندیزونو باند په ټوله اسلامي نړۍ کې یوازي د پاکستان اسلامي حکومت دی چه زیات خفګان یې څرګند کړی او د ملګرو ملتو د امنیت د شورای دا عمل یې په کلکه غندلی دی او داکار یې د افغانستان پر مظلومو او خوارو خلګو باند ی ، چه په دې دولسیزو کې ډیر زوریدلي او کړیدلي دي ، او همدارا ز د وچکالۍ مصیبت زیات ځپلي دي ، ډیر بې رحمانه او ظالمانه عمل وباله . نورو ټولو حکومتونو ورباندي کوم رسمي احتجاج ونکړ، د مالیزیا حکومت چه د ملګرو ملتو د امنیت په شورای کې غړیتوب هم لري د خپل یوه مسلمانه هیواد په حق کې د خیر د توري د ویلو پر ځای غونډي ته نه حاضریدلو ته ترجیح ورکړه .

په دې کې د طالبانو د اسلامي حکومت پرضد د اقتصادي بندیزونو قرارداد لاسلیك او منظور شویدی ، د افغانستان په اسلامي امارت یا په بل عبارت پر نړیواله نقشه باندي د یوه سوچه اسلامي هیواد ښکاریدونکي پر خلاف یو نړیوال یوون ښکاري . او باید وویل شي چه د یوه سوچه ، خالص او عملي اسلامي نظام د ورکولو . او ناکام کولو لپاره یوازي امریکه ، روسیه یو نه وی بلکي نور په نامه مسلمانو هیوادونو هم د خپلووزنو د دوی په پله کې د وراچولو پریکړه کړې ده . تر کومه ځایه چې د اقتصادي بندیزونه ، او محاصرې خبره ده ، دا کومه نوی خبره ښکاري ، د اسلامي نظام او حکومت په خاطر طالبان د دې ظلم او کړاو ښکار کیږي ، او د دې سوچه اسلام دین د بیرغ د اوچتولو په مقابل کې د لوږې او افلاسی ګردابونو ته ورټیل وهل کیږي ددې محاصرو پیل له نن نه څوارلس سوه کاله وړاندې دې ته ورته حالاتو باندې شویدی ، له دې داسې احساس کیږي لکه چې د تاریخ شاته راګرځیدل وي او د نن پر ځای ولاړوي .

کله چې په مکه مکرمه کې حضرت محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم د خدای "ج" د عبادت لپاره تبلیغ او دعوت پیل کړ ، او د مکې جهال کفار دي . دې ته چې د یوه اوبې شریکه خدای "ج" عبادت وکړي ، او د بت پرستۍ او شرك څخه لاس پرسرشي ، رابلل ، نو د قریشو کفارو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم پر کورنۍ ( بني هاشم ) باندي اقتصادي بندیز ولګاوه او هغه لاري چه دوی ته پرې خوراکی ، او نور د ضرورت وړ مواد راتلل وترل ، او ټول جهال په دی موافق شول چې نه د بنی هاشم له کورنۍ سره اخیستل ، او پیرودل وکړي .

نه به هغوی ته د څښلو او خوړلو مواد وروړي او نه به ورسره ویني تر څو دوی په دې مجبور شي چې نبی کریم ﷺ د وژلو لپاره موږ ته وسپاري . نو د اسلامي امارت پر خلاف د امنیت شورای پریکړه لیك که مطالعه شي دا ترې جوتیږي چې دا قرارداد له ننه څوارلس سوه کال وړاندې د هغه قرارداد نقل دی کوم چې د قریشو کفارو د نبی کریم صلی الله علیه وسلم پر خلاف کړی و. او د دې قرارداد د اهمیت د لوړولو او د ښه تاثیر لپاره یې دا قرارداد بیت الله شریف پر دروازه ځوړند کړ .

علامه سید سلیمان ندوی لیکي چه " تر دري کالو پوري د هاشم کورنۍ په دغه بندیز کې شپې او ورځې تیرې کړې . او دا وخت دومره سخت تیر شو چه هغوی به د ونو پاڼې خوړلې او ځان به یې ساتلو .

په دې دري کالو کې د سختې محاصرې ، تکلیفونو ، کړاونو او لوږو ، تندو سره سره هم د هغه په دعوت او تبلیغ کې فرق رانه غی او نه له خپل اسلامي دریځه وا وښت دهغه د اثر او ماحول د تنګیدو پر ځای لاپسې پراخیده . تر دې چه د صفرت ابوذر غفاري په څیر لوی شخصیتونه هم له دباندی راغلل او په دې وخت کې

مسلمان شو ، او په ښکاره سره يې د اسلام اعلان وکړ .

قريشو چه د بنديزونو پلان د ناکام کيدلو په حالت کې وليد نو بې خپله دا محاصره ماته کړه . او دا ورته معلومه شوه چه دا د يوه خداى بندګان او د هغه په ساتنه عقيده او امان لري

طالبان هم د اسلام د ستر لارښود حضرت محمد "ص" پيروان او دهغه په پله باندې خپل قدمونه اخلي که دا مسلمان او د اسلام د دين څخه نه اوښتونکي قوم په دې خپل اسلامي نظر او دريځ چه لري يې وانه وړي ، خداى "ج" به د دوى ملګرى وي او د کفارو دا پلانونه او دسيسې به يو په بل پسې شنډې کړي .

د اميرالمومنين په دې عزم او دريځ چه ، بنديزونه يې رد کړل ، مجاهد اسامه بن لادن و امريکا ته د سپارلو غوښتنه يې ونه منله او وايي چه موږ يوازې د خداى "ج" په نصرت تکل کوو تر هغو پورې چه يوه قطره وينه مو په تن کې وي د اسلامي نظام د نافذيدلو څخه به لاس وانخلو .

په لوږو ، تندو او تکليفونو کې په ژوند تيرولو سره به هرو مره د هغه پر خلاف د بنديزونو کړي ماتيږي ، او په دې اسلامي عزم سره به لا د ځان ملګري زيات کړي ، او دغرب او شرق دا محاصره داسې ناکاميږي لکه د قريشو بنديز چه د بنوهاشم پر کورونو يې لګولى و .

الحمدلله افغانستان مسلمان او دينداره ولس په دې ګروه او عقيده دى چه د خداى "ج" پيدا يو او هغه به رزق راکوي او ساتي به مو ، څکه خداى "ج" په خپل کتاب قران عظيم الشان کې راسره وعده او ژمنه کړې چه فرمايي :

وما من دابه في الارض الا على الله رزقها الايه .. خداى "ج" موږ ته خوږې راکړي نو رزق به هم راکوي

د افغانستان مسلمان خلک په دې ايمان لري چه رزق ورکول ، رزق زياتيدل او کميدل او داسې ... نور دا ټوله کارونه د خداى "ج" په لاس دي هر څه يې رضا وي هغه کوي . که وغواړي څوک ذليل او محکوم کړي او که وغواړي عزت من يې کړي کولاى شي او په هر څه باندې قادر دى . ټوله کفري نړۍ په دې اند ده چه د طالبانو د دې اسلامي نظام د نفوذ مخه ونيسي . په ډول ډول دسيسو او پلانونو لاس پورې کوي تر څو دا نظام له سکوت سره مخ کړي او په يونه ډول سره د دې اسلامي زعيم په وړاندې د افغانستان خلک را وپاروي او يو ځل بيا د جنګونو لړۍ پيل کړي او اسلامي نظام چه حاکم دى له مينځه يوسي .

خو افغانانو خپل دښمن ښه پيژندلى او هيڅ کله به تير نه وزي ، او افغانان يو مسلمان قوم او د يوه قوي ايمان څښتنان دي له اسلام نه پرته بل يو نظام په ځان نه شي منلاى

خداى "ج" د حق ملګرى دى . ليرې نه ده هغه چه نن يې د فرعون فکر په سرکې دى سبا به ضرب ،ضرب ګوري او ځان به اوتر نيسي .

افغان مسلمان ولس په هغه ، دغه دوليرې ( احساس نه کوي ) ډيرو سترو امپراطوريو چه وايي ( لمريې په امپراطورۍ کې لويده ) خپل زور ازمويلى خو سوبه يې نه ده په برخه شوې او شرمونو شرميدلې دي خداى "ج" شته او هغه ښه قادر او ناصر دى .

پاى

## معلومات

۱- ګل کب يا ګل ماهي :

دا يو داسې کب دى چه لکۍ يې د ګل په ډول ده کوم وخت چه بل حيوان يا غټ ماهي ورباندې حمله کوي نو دى سر کښته او لکۍ پورته د ګل په ډول ونيسي چه پدې ترتيب ځان د خطر څخه ژغوري

۲- د انسان په ډول پړانګ .

يوې امريکايي جريدې په افريقائي ځنګلونو کې د يوه داسې پړانګ دليدلو خبر ورکړيدى چه سر او بدن يې د انسان په ډول ښکاريږي لاکن پر بدن يې د پړانګ په ډول خړ او سپين ټکي دي .

۳- هندوستاني ځوان

يو هندوستاني ځوان چه کوم وخت پنځه کلن و لا به يې د موټرانو څخه تيل غلا کول او بيا به يې څښل او اوس دا ځوان تقريباً ۱۸- ۲۰ کلن دى او سنديپ نوميږي دى څکه مور او پلار له کور څخه وشاړه چه ده به پر تيلو څښلو سره بيره زهرجن ماران او چنجان خوړل . دا ځوان خبريالانو ته ويلي وه چه : د دې خوندوري غذا د خوړلو څخه پرته د ده ژوند خطرناك او آن چه د مرګ ويره لري .

۴- درنه غالۍ :

د لندن په يوه پيژندل سوي او مشهور هوټل کې دومره درنه غالۍ هواره ده چه ، کابو ۷۰ نفره يې لا د پورته کيدلو څخه عاجز دي .

محمد ابراهيم "سپخلى"

# نړۍ په زړه پورې او حیرانوونکي معلومات

نثار احمد آریا

هر کله ازانګه کیدونکې ږغ :

هو ، په نړۍ کښې هر کله ازانګه کیدونکې ږغ اذان دی . که چیری تاسو د نړۍ نقشه وګورۍ نو به تاسوته څرګنده شي

چې په اسلامي هیوادونو کښې اندونیزیا د ځمکې د کوړې .

په ختیځ کښې پروت دی . دا هیواد د زرګونو ټاپو وزمو څخه جوړ دی چې په هغو کښې جاوا . بورینو ، سیلبز او سماټرا لوې ټاپو وزمې دي د اسلامي هیوادونو سهار د

سهار نه ختیځو ټاپوو زمو څه پیل کیږی چې هلته د سهار پنځه نیمې بجې وي ، چې دلته په ګران هیواد افغانستان کښې د شپې یوه بجه کیدونکې وي له سپیده داغ سره سم د اندونیزیا په بجې ختیځو ټاپو وزمو کې د سهار اذانونه پیل شي او په یوه وخت په زرګونه مؤذنان د لوی څښتن " ج " د وحدانیت او سپیڅلی پیغمبر " ص " د رسالت د اعلان ږغونه پورته کړي . دا لړۍ له ختیځو ټاپو وزمو څخه د لویدیځو ټاپو وزمو په لور ستنیږي چې نیم ساعت ورسته په جکارتا کښې د موذنانو د اذان کولو وار راځي د جکارتا څخه دالړۍ په سماټرا کښې پیل کیږي خو د سماټرا په لویدیځو کلیو او بانډو کښې د اذانو پیل کیدنه وړاندې د ملایا په مسجدونو کښې اذانونه پیل کیږی . د ملائیا وروسته د برما وار راځي ، د جکارتا څخه چې د اذانو کمه لړۍ پیل شوې هغه یو ساعت ورسته بنګله دیش ته را رسي ، په بنګله دیش کښې اذانونه پای ته نه وي رسیدلي چې د کلکتې څخه تر سریلانکا پوري د اذانونو ازانګې هسکې کیږی ، بل لور ته دالړۍ د کلکتې څخه د بمبیي په لور اوږدیږی چې د ټول هندوستان فضا د توحید او رسالت اعلان کوي . په سرینګر او شالکوټ کښې د سهار د اذانو یو وخت دی ، د شالکوټ څه تر کوټې کراچې او ګوادر پوري د څلویښتو دقیقو فرق دی چې پدې وخت کښې په پاکستان کښې د سهار اذانونه اوچتیږي په پاکستان کښې د دې لړۍ پای ته رسیدو وړاندې په ګران افغانستان او مشهد کښې اذانونه پیل شي ، بیا د افغانستان څخه تر بغداد پورې یو ساعت توپیر دی چې پدې مهال کښې په سعودی عرب ، یمن ، عرب متحده امارات او کویټ کښې اذانونه تر غوږ کیږي . له بغداد څخه تر اسکندرې پوري بیا یو ساعت توپیر لری چې پدې پېر کښې په شام ، مصر ، صومالیه او سوډان کښې اذانونه کیږی . اسکندریه او استنبول په یوه لیکه کښې په ترکیه کښې اذانونه پیل وي د اسکندرې څخه تر طابس پوري د یوه ساعت ځنډ دی چې پدې ځنډ کښې په شمالي افریقا کښې په لیبیا او تیونس کښې د اذانو لړۍ روانه وي . د سهار اذان چې پیل یې د اندونیزیا د ختیځو ټاپو وزمو څخه کیږی نهه نیم ساعت ورسته د بحرا قیانوس ختیځو څنډوته رسیږی بحر ا قیانوس ته چې د سهار د اذان وخت نه وي رسیدلی په ختیځې اندونیزیا کښې بیا د ماسپښین د اذانو لړۍ پیل شی خو په ډهاکه کښې د ماسپښین تر اذان وړاندې بیا په ختیځې اندونیزیا کښې د مازدیګر اذان د هوا څپې خپره وي دالړۍ په یو نیم ساعت کښې له ستونزي سره وه جکار تا ته رسي چې په ختیځو ټاپو وزمو کښې د ماښام د اذان

وخت کیږي د ماښام اذانونه چې د سیلبز څخه تر سماټرا پوري رسیږي نو پدې کښې د اندونیزیا په ختیځو ټاپو وزمو کښې د ماخستن د اذانو لړۍ پیل شي ، پدې وخت کښې په افریقا کښې د سهار د اذان لپاره د موذن ګوتې په غوږو کښې وي تاسو لږ ځیر شئ چې د ځمکې په کره باندې یوه سانیه هم همداسې نه تیریږی چې په هغه کښې دی په سلګونه او زرګونه موذنان د لوی څښتن " ج " د توحید او محمد " ص " د سپیڅلی رسالت اعلان نه کوي او انشاء الله دا لړۍ به د قیامت تر ورځې لوی څښتن " ج " همداسې روانه وساتی .

مولوی برهان الدین "رسولی"

# د غوسې حقیقت د اسلام په هنداره کې

غوسه د هغه اور لمبه ده چې په زړه بلیږي اصلي تاتوبی یې د زړه تل دی څو د نفس لوئي اوغرور یې د باندې راخرگندوي.

غوسه هغه حالت ته ویل کیږي چې دانسان وینه د غچ اخستلو په اراده په جوش کې راشي د انسان دا قوت هغه د زیان کیدو مخنیوی او د زیان د ورپیښیدو په صورت کې یې د زړه د سړولو هڅه کوي. دا چې غوسه او د غچ اخستلو اراده کوم یو بل سبب دی پدې هکله د څیړونکو رایې مختلفې دی خو امام غزالی (رح) د انتقام اخستلو مینه د غوسې راپاریدو سبب او حتلی خوند او مالگه بللې.

په عامه توگه خلك په دې قوت کې درې ډلې دي. یا پدې اړه په زیاتي کې اخته دي یا کمي کې او یا منځ لاري دي په غوسه کې د افراط او تفریط اغیزې ناوړه او اعتدال پکښې یو غوره صفت دی.

د غوسې تفریط یا کمزوری هغه ده چې انسان دا قوت له لاسه ورکړي. او تل سوړ وي. همداسې شخص ته بیا د میړنیو په تولنه کې په درنه سترگه نه کتل کیږي او په سپکو نومونو یادیږي. امام شافعي "رح" خو داسې انسان چې هیڅ شی هم د هغه غوسه نه را پاروي خر بللی

د چا دغوسې سکروټې چې مړې وي د هغه نه دمیړانې تمه نشي کیدی. ځکه خو الله تعالی د نبي کریم "ص" اصحاب او ملگري زړه او د حمیت لرونکي بللي او داسې فرمایي محمد د الله "ج" استازی دی او ورسره ملگري یې په کافرانو سخت او په خپلو کې زړه سواندی دي. الفتح ۲۲ په بل ځای کې یې خپل خواږه استازی ته داسې حکم کړی. (ای پیغمبره د الله نه منونکو او دو ه مخو سره په جهاد لاس پوری کړه او سختی پری وکړه) التوبه ۷۳ په پورتنیو جلاجلا آیتونو کې د شدت او غلظت ذکر وشو. چې دواړه د غوسې او حمیت نه پرته منځ ته نه راځي.

د انسان جوړښت او خلقت حکیمانه دی او کومې ځانگړتیاوې چې الله "ج" ورکړی یوه هم بې گټې نده غوسه هم که چیرې په خپل ځای او ټاکلي حدودو کې استعمال شي ښې پایلې لري. ځکه خو الله "ج" د دغه قوت د منځه وړلو حکم ندی کړی بلکه یواځې د غوسې د زغمونکو ستاینه ئې کړې او د الله "ج" نه د بریدونکو په لیکه کې یې یاد کړی. پدې اړه دې د سورة آل عمران ۱۳۴ آیت وکتل شي.

په چا کې چې د غوسې او حمیت صفت کمزوری وي په خپل حریم باندې د بل تیری عیب نه گڼي تل سپکو او د دین نه باغي خلکو ته سر ښکته کوي او د هغوی تالی ختی وي.

حضرت سعد "رض" یو ځل د نبی کریم "ص" نه وپوښتل ای د الله رسوله! که څوك د خپلې کور ودانۍ سره څوك په بدلمنی ووینی آیا په داسې وخت کې به هم گواهان لټوی؟ حضرت وفرمایل: هو سعد وویل: په الله قسم که ما په خپل کورکې داسې څوك ولید لومړی به د خپلې ښځې او بیا به دهغه سرې سر په توره غوڅ کړم نبی کریم "ص" د هغه د غیرت دا جذبه وستایله او وېفرمایل د خپل مشر دې غیرت ته خو ځیر شی قسم په الله چې زه لدی هم غیرتی یم او الله تعالی له مانه هم غیرتی دی

د نبی کریم "ص" په هکله په احادیثو کې ویل کیږي چې کله به د الله تعالٰی حکمونه تر پښو لاندې شول او یا به یې سپکاوی وشو د ډیری غوسې نه به یې اننگی مبارك د انارو د دانو غوندې سره شول. بیا به چا نه پیژانده او نه به یې دغوسې مخې ته څه شی تمیدای شو. د ځینی حکیمانو وینا ده چې د هرامت او قوم د سړو غیرت او غوسه چې ژوندی وی د هغه قوم د ښځو حیا او پت به خوندی وي. د غوسې اعتدال هغه دی چې ددین او عقل تابع وي د غیرت په مقام کې راپاریږي او د حلم او زغم په ځای کې سړه شی ځکه چې د الله تعالی د دوستانو صفت دی.

د غوسې افراط هغه دی چې د انسان له لاسه یې واگی ووزي بصیرت او سوچ یې له مینځه یوسي. او د بدبختیو کندو ته یې لاهو کړي. د یو حدیث د مفهوم مطابق شیطان په همداسې حال کې د انسان په سر سپورشي او دغوسې اورته یې لمن وهی.

دغوسې په څپو کیدو اسباب ځینی طبیعي او ځیني اکتسابی دي: د چا په فطرت او خټه کې د غوسې بڅرې نغښتې وي او د تندې نه یې بریښې چې د مرچو پیتی یې په شادی. ځیني خلك بیا پدې رنځ هلته اخته کیږي چې ناسته او ولاړه یې د داسې سره وي چې دغوسې په سړولو باندې ویاړي او هغه میړانه بولي.طبعي ده چې

د داسي خلکو صحبت د انسان په حلم او زغم ناوړه اغیزه کوی او د غچ اخستلو جذبی ته یې وده ورکوی.

د غوسی اور چې څومره سور شی په همغی اندازه انسان د نصیحت د اوریدونه غافله کیږی او د غوسی د اور تاویې د دوست او دښمن خبری یو شان سوزوی. د بی حده غوسه ناك انسان د عقل د یوه تل دغوسی په تورو لوګو کې ډوبه وی او سپینه پراخه دنیا ورته تور تم ښکاری. د غوسی څپو ډیر خلك د مرګ غیږی ته رسولی او د څو شیبو زغم پرځای یې د تور توپك ګولی د ځان نه ځار کړی او د ابدی عذاب کندی ته یې ور دانګلی. اویا یې د بل ځا مور بوره کړی. دبی کچه غوسی اثار په ظاهری جسم باندی هم څرګندوی. لکه د رنګ او اواز بدلون د غړو ریږدیدل د حرکاتو بی نظمی د سترګو سور والی د غاړی د رګونو پړسیدل که د غوسی په حال کې څوك خپل بی خونده صورت وګوری دحیا نه بی یې غوسه سړه شی

د غوسی په حال کې د انسان ژبه وچ او لامده یو شان ریبی نه کښنځلی له چا نه سپموی او نه ستغی سپوری وینا وی څوك چې د غچ اخستلو وس ونه لری او په همدی بنیاد غوسه زړه ته ښکته کړی زړه به ګنو رنځونو اخته کوی چې کینه، بدنیتی، چغلی او غیبت د بل د حیا پرده څیرول د هغه په غم خوشحالی او خندا پری کول پکښی له ټولونه ښکاره دی.

د غوسی غړپ تریخ دی خوبدلی یې دڅښتن تعالی په نزد خورا زیاتی دی. د سوره ال عمران په هغه آیت کې چې مخکی ورته اشاره وشوه الله تعالی د متقیانو سره دداسی جنت ژمنه کړی چې سور یې د اسمانونو او ځمکی هومره دی. او په هماغه ځای کې یې دمتقیانو د ځانګړتیا وو څنی دغوسی زغمل هم ذکر کړی. په یوه حدیث کې نبی علیه السلام فرمایلی (چا چې خپله غوسه بنده کړه الله تعالی به هغه د خپل د عذاب نه وژغوری چا چې الله تعالی ته د عذر جولی ونیوله الله تعالی به یې د بی پتی نه وساتی) بل ځای د الله تعالی خوږ استازی داسی وایی (چا چې خپله غوسه وزغمله سره لدی چې: هغی په نافذولو قادر وی دالله تعالی به نوموړی شخص د قیامت په ورځی له ټولو نه وړاندی خپل حضور ته را وبلی او د حورو د خوښولو واك به ورکړی کومه یوه چې ده هغه خوښه وی هغه به ورته واده کړی.) په بل حدیث شریف کې راغلی (پهلوان هغه ندی چې بل را وپرزوی بلکه رینښتنی پهلوان هغه دی چې د غوسی په حال کې خپل ځان په واك کې وساتی.)

همدارنګه د غوسی د پلی کولو عواقب هم ډیر زړه لړزونکی‌دی. د نبی علیه السلام وینا ده چې (د دوزخ یوه دروازه داسی ده چې پرته د هغه چانه چې خپله غوسه یې د الله نه په سرغړونه سړه کړی وی بل څوك پری نه ور داخلیږی).

حضرت عمر "رض" وایی د چا چې د الله تعالی نه ویره په زړه کی وی په مسلمان باندی خپله غوسه نه سړوی.

بل ځای محمد "ص" داسې فرمایی (غوسه ایمان داسی زیان من کوی څنګه چې د صبر ونی اوبه چې ډیری ترخی دي) د شیدو خوند خرابوی.

د غوسی د اور د سړولو په هکله نبی علیه السلام ډیری په زړه پوری او له حکمت نه ډکی لارښونی کړی په یو حدیث کې چې ابوذر "رض" روایت کړی داسی فرمایی (کله چې په تاسو کې یوتن غوسه شی که ولاړدی په ځمکه دی کښینی که غوسه ور نه لاړه خوښه ده که نه نو څنګ دی ولګوی) له بده مرغه د ډیرو خلګو چلند د دی حکیمانه ارشاد بر عکس وی نو ځکه د خپلی غوسی په اور کی سوزی.

په یو بل حدیث کې داسی راغلی دی (غوسه د شیطان نه او شیطان د اورنه پیدا دی اور په اوبو وژل کیږی نو کله چې ستاسو نه یو تن غوسه شي هغه دی اودس وکړی)

د غوسی په حال کې باید انسان د الله تعالی لویی وریاده کړی او د اعوذبالله ویلو سره دی د شیطان د شرنه د الله تعالی درته پناه یوسی او دا هغه دم دی چې پیغمبر "ص" بی بی عایشی ته دهغی د غوسی په حال کې ښوولی وه.

هوښیاران وایی چې د ښینی او زغم خوند چې څوك وڅکی هغه به هیڅ کله د خپلی بدلی د اخستلو هڅه ونکړی او د شاعر په وینا چې وایی:

گشتم سالها به بیابان و کوه دشت
چیزی نیافتیم که به باشد از گذشت
وز انتقام نیز نبردیم لزتی
ما را در سیر خود همین بود سرگذشت

# وطن یا کفن - یا څرګنده جنایت

جلال "خپلواک" خوست

د خپلې پوهې په اندازه چې هر څومره عادلانه فکر کولی شم نو دې نتیجې ته رسیږم چې حقیقت ته به د حقیقت په سترګه کتل کوم بداو ناوړه کار نوی . او نه به زه وایم چه څوك رانه پدا خبره خفه کیږي ځکه چه یو لیکوال یا مصنف چه غواړي راتلونکي پیړۍ او راتلونکې نسل ته داسې څه پریږدي چه د راتلونکی نسل وربانديٍ عقیده پخه شي چه په ښه او عادلانه توګه یې خپل کار سرته رسولی دیٔ . او خپله وجیبه یې پوره کړي ده لیکوال یا مصنف ځان باید د راتلونکي نسل لپاره د تهمت نشانه نکړي او په هره جمله او هره لیکنه کې باید چه حقیقت ته په درنه سترګه وګوري د هیڅا په حق باید پښې ونه غځوي لیکوال باید په خپل عمل کې هرې پیښې او څیزې ته د هنداري په څیر په خپل شکل انعکاس ورکړي : -

له مصنف او لیکوالانو څخه یې په ادبي مینه بخښنه غواړم تاسو درنو لوستونکو ته به معلومه وي چه په دې وروستیو کلونو کې د وطن یا کفن په نامه کتاب په پیښور کې چاپ شوي دي چه خاصه موضوع یې د ډاکترنجیب د عمر سوانح دي او بیلابیلو لیکوالانو د هغې په ژوند . عمل . ملګرتیا . بند او وژنه باندې لیکنې کړي دي زما یې د چاله لیکنو سره څه هغه د سترو لیکوالانو کار دی چه ټول کتاب له نظره تیر کړي او په هره لیکنه کې د هر چا عملي خیانت په ګوته کړي خو زه یې صرف د پښتنې په انځور دا دې څو جملې لیکم : -

ګرانو لوستونکو د پښتنې انځوریې په داسې ډول جوړ کړي چه د نجیب پښتنه لونګې پر سر او موسکا خوله مالومیږي غاړې ته یې رسي ورآچول شوي ده او د هغه په شرعي حد رسونکی د (طالب) داسې رسم شویدی چه د اسلام په لحاظ یې هم جرم نه شوبللی او د بشر پیژندنې په لحاظ هم ځکه چه د انسان بڼه نده ورکړل شوې نو تاسو دا ښکاره جنایت نه ګڼئ زه فکر نکوم چه یو افغان خصوصا پښتون به ورته جنایت ونه وایې او که څو محدود کسان ورته دا نوم نشي ایښودای نو راځئ چه حقیقت ته وګورو .

۱ - آیا د اسلام په لحاظ دا کار شوي ؟

۲ - آیا د افغانیت په لحاظ دا کار شوي ؟

۳ - آیا د قومولي په لحاظ دا کار شوي ؟

۴- او که د پردیو د مزدورۍ او غلامۍ په نوم ؟

او س به لومړی پوښتنه راواخلو که چیرې د اسلام په نامه دا کار شوي وي چه ګنې نجیب له دوی څخه نیك مسلمان وو نو کوم دلیل به دلته ریښتیا ثابت شي ؟ د ډاکترنجیب په وخت کې جوارۍ کیدله او په جنګي کرښو کې هسې یوه ساعتیري ترینه جوړه شوې وه شراب په میلمستیا هغه هم په لویه او خصوصي میلمستیا کې کارول کیدل چور چپاول د عسکرو ورځنی کار وو . د هیواد په بیلابیلو سیمو کې د همیش لپاره په سینماګانو او ویدیوکسیټو باندې لوڅ او غیر شرعي فلمونه ښودل کیدل چه اکثره به یې په روس او هندوستان کې جوړیدل دا خو لاڅه چه د خپل مذهب پالنه او هغې ته خدمت په هغه ناروا ټولنه کې یو عیب ګرځیدلي وو ښځو ته د هغه حق په نسبت چه اسلام او شریعت یې ورکوي تقریبا څو چنده زیات حق ورکړل شوي وو ځکه چه په سترو او لږي سفر کوونکو الوتکو کې په نیملوڅو ښځو خدمت کاوه همدارنګه د کابل په ځینو مخصوصو هوټلونو کې د منځنۍ آسیا څخه راغلو سیلانیانوځینکو په ذکر شوي لباس کې خدمت او شاګردي کولې حال دا چه د نجیب په حد رسونکي طالب جوارۍ ته حد ټاکلي شراب حرام ګڼي او څښونکي یې په شرعي حد محکوموي دغلو او داړه مارانو لاسونه غوڅوي ویډیو او سینما غیر شرعي عمل بولي مذهب ته احترام لري او د هغه خدمت فخر ګڼي او ښځو ته یې هم د حالاتو مطابق شرعي حق ورکړي دی نو تاسو څه قضاوت کوي چه دا علمي خیانت ندي ؟

۲ – که چیرې د افغانیت په لحاظ دا
رنګه انځور جواز موندلی شي نو
راځي چه وګورو څوک افغان دي او
څوک له افغانیت څخه سترګې پټوي .
د نجیب په "حد رسونکي" د
شهیدانو په نامه پلونه جوړوي د
غازیانو په نامه ځلي او سړکونه
جوړوي جنګ ځپلې ابادۍ یې په پام
کې نیولي دي او د سترو نیکونو هغه
قبرونه چه د نجیب د رژیم په وخت کې
یا خو قصداً راسپړل شوي او یا خو په
توپونو ویجاړ شویدي بیرته ترمیموي
او مقبرې ورباندې جوړوي او تر اوسه
یې له افغانیت څخه هم هغه ډول
انکار ندی کړي لکه ډاکټر نجیب چه
ویلي دي د کتاب نوم ( شوروي اتحاد
ته ملګري نجیب رسمي اودوستانه
سفر ) په ۲۸ مه صفه کې " د ملګري
نجیب وینا " تر عنوان لاندې لیکل
شوي دي چه :
دغه ده حیرانونکې نړۍ او د انقلابونو
کرکټردا دي مارکسیزم لینینیزم
خلاقیت او تاریخي عمل چه اهنګ او
اندازه یې تکان ورکوونکې دلازموږ
خلک وایي چې د مشر ورور لار د کشر
ورور پل دي ټوله نړۍ دغه ټکي چه
ریښتیني لینینیتوب یعنی څه او
انقلاب ته په څه ډول باید وده او
ژورتیا ورکړل شي ؟ له تاسو ملګرو او
د شوروي اتحاد له کمونیست ګوند
څخه زده کوي ) همدارنګه ( د
شوروي اتحاد ته د ملګري نجیب
رسمي او دوستانه سفر ) په ۱۱
صفحه کې د ګلانو ایښودل تر عنوان
لاندې لیکل شوي دي چه دافغانستان
د خلک دموکراتیک ګوند د مرکزي
کمیټې عمومي منشي ملګري نجیب
او د ده ملګري هیات په سیمه ئیز
وخت قوس په ۲۱ سهار په لسو بجو
په داسې حال کې چه د شوروي اتحاد
د کمونیست ګوند د مرکزي کمیټې
منشي ملګري اناتولي دوبرنین ورسره
وو د نړۍ د پرولتاریا د مشر او د
شوروي دولت د موسس ولادیمیرایلچ
لینین په ارامګاه باندې د ګلو ګیډۍ
کیښودې او د لینین د ارامګاه په
وړاندې یې درناوي وکړ .... د نوم و
رکې سرتیري د یادونې د ځای تر
څنګ یې د ګلانو ګیډۍ کیښودې "
دلته که حقیقت په پام کې ونیول شي
نو دا ډول انځور به عملي خیانت نه
وي دلته ښکاره وینو چه څوک د خپلې
عنعنې او خپلې پلازنۍ مفکورې
تخریبکار دي او چا په درانه سترګه
ورته کتلې دي . که چیرې په دا لحاظ
دا کار شوي وي نو دلته باید دا ټکي
په پام کې ونیول شي چه د هغه په (
حد رسونکو ) د اسلام او ورورولۍ له
مخې داسې دریځ غوره کړي دي چه
کوم تعصب ؟ او د چا سره پکې نه
تثبیتیږي خو بیا هم نجیب که پښتون
دي دا خلک خو هم اکثره پښتانه دي
دا خبره هم زما په نظر دلیل نشي
جوړیدای

**روسان لا تر اوسه**
**نه پوهیږي**
**دا وخت افغان**
**زلمو ته څه کول**
**بکار دي**

افغان هغه قوم دي چه په تاریخ کې
یې ډیر ځله په خپل ځان او وجود هر
ملنډې وهلې خو بیا یې ډیر ځله خپل
تاریخ په داسې ټکو لیکلی چه هم
ټکي یې لکه هنداره ډیره ځیرې
راښیي . څو څو ځله په دا خاوره هغه
څه تیر شوي چه په نړۍ کې یې
یواځنی مثال د یوریشما ښار دی چه
تر اوسه پورې پکې د باروتو د بوی له
امله د زراعت لمن جینګړه ده مړاوې
ده خو دا داسې خاوره نده چه د باروتو
بوی دې ورباندې دومره بد ولګیږي
دې خاورې ډیر ځله داسې ګذارونه
خوړلي دي چې به لیکلویې د سړي
قلم له لاسه لوئیږي خو بیا یې هم د
اغیار د پښو پل د خپل یوه قدردان
بچي په قبر ندې منلي . تیر ځل کله
چه روسانو د ۱۳۵۸ ه کال د جدی په
شپږمه نیټه په افغانستان ښکاره
عسکري تجاوز وکړ د افغان ځوان او
با شهامته ملت په ورکیدو پسې یې
ملا وتړله زړه یې غوښتل چه د "
پترکبیر" هغه ارمان چه یواځې او
یواځې د سپکاوي انسان وژنې او
غلامیتوب پربنیاد ولاړ وو پوره کړي
خو ونه توانیدل کله چه افغانانو په
خارج او په داخل کې په مبارزه لاس
پورې کړ نو په هغه وخت کې د
افغانانو د مبارزې یواځینی وسیله د
تکبیر ناره وه په تشو لاسو مبارزه یې
پداسې حال کې څوارلس کاله تر سره
کړه چه په نتیجه کې یې د روس لویه
امپراطوري د کمونستانو په اصطلاح
چه د "لوی دوست" هغه ځاله چه لوی
شوروي به یې بلل دړې وړې شوه له
رنګیدو وروسته داسې ځای ورسیده
چه په دې وروستیو کلونو کې یې د

هغې امريکا د ډالرو په مقابل کې چه د يواځيني دښمن په نامه يې پيژانده ځيني زړوي وسلي هغه چه د امريکا تر ټولو ستر آرمان وو رنګې او وسپړلي هغه لوبڼ شوروي په داسې شرمونو وشرميده چه د لوړې مړ شو آواز يې ټولې نړۍ ته ورسيده خو اوس يې بيا نپوهيږو چې کوم خوب ليدلى او څنګه يې دومره زړه کړيدى چه يو ځل بيا د افغانستان په موضوع کې په عملي ډول خپل نوم راپورته کړي دومره ژر خو به يې زه وايم چه هغه پخواني درس هم نه وي هير کړي خو موږ پوهيږو چه له پيښې تيښته نشته څه چه پيښيږي د الله رب العزت لخوا شکر پرې باسو دا د نن خبره نده موږ هره شپه هر کال او هره پيړۍ خپل تاريخ په يو ډول ساده قرباني ښکلې کړي او هر وخت مو د ګران وطن پت د سر په بيه ساتلى دي ساده قرباني هغه قرباني ده چه هيڅ وخت رانه کوم غليم د يوې معاهدې يا بشرنامې په مقابل کې ندي له دې وطنه تللى بلکه هر وخت رانه دښمنان په تيښته تښتيدلي دي خو مخکې به چه کوم غليم افغانانو د توري او ميړانې په ميدان کې مات کړ نو هغې به خپل پاتيکيدونکې ياداشت په عادلانه ډول ليکل لکه " رابرت " چو په خپل ياد داشت کې ليکلي چه ( زه د دنيا په مخ د هر منظم پوځ سره جنګيدلى شم نه د افغانانو سره څکه چه دوى پنځلس ميليونه نفوس لرى او همدا تعداد پوځ ) مطلب دا چه خپله ماته به يې ښکاره ومنله او وروسته له ماتې به دې ملت ته لاس په سلام شو خو دا يوازې دا بې شرمه شوروي دي چه بيا بيا د افغانستان نوم اخلي اول خو کله چه دوى په افغانستان کې ماتې ته مجبور شول نو د دې هيواد نه د وتلو بهانه يې د جينوا د غونډې نه سرغړاوئى وباله کله چې د دوى هغه وروستى جنرال له آمو څخه پوريووت نو افغانستان ته يې مخ راواړاوه د خپلې وينا په جريان کې يې خپل تجاوز ګنا وباله او يادونه يې وکړه چه " دې خاورې ته چه څوک د غلامۍ په نظر ګوري او غواړي چه ځان ورباندې د يوه بادار په حيث ومني نو يوازې به ترينه هغه څه په خپله پيښکه پورې غوټه راوړي چه ماته نوميږي خصوصاً د لويې امپراطورۍ ماته " نو اوس پداڅو کلونو کې ولې ترينه هغه خبرې هيرې شوې دى زه پوهيږم چه هغه د افغانانو د عقيدې او همت په مقابل کې مقاومت نشي کولى څکه چې دا ځل روسيه له هغه بل ځل شوروي څخه ډيره کمزورى او نيستمه ده هسې هغه په پښتو کې متل دي چه هندو د دنيا پر مخ په هيڅ ځاى کې څوک نشي څملولى البته د پاسته ډيران په سر .که چيرې د پوهاند صمد " حامد " خبره رښتيا وي چه روسان دا مسئله د دې لپاره جګړه ئيږه کوي چه په سيمه کې شدت رامنځته کړى او په منځنى آسيا کې خپل وجود ثابت کړى څو په آسانه وکولى شي چه په منځني آسيا باندې د مرستندوى او سوله ساتونکې په نامه حکومت وکړى هغه خو بيله خبره ده خو که چيرې يې د دوهم ځل لپاره بيا آزموئنې ته زړه کيږى نو زموږ وطنپالو زلموته پکار دي چه د ستر بابا ستر شعار راپورته کړي د مقدس جهاد او وطن پالنى لپاره الهى تکبير يو ځل بيا د دې لوړ سرو غرو په درو کې په آزانګو راولي او د پښتنې خورملالى ستر يادګار ژوندى وساتي او هيڅ زلمى مو بايد چه دې پيغور ته ځان برابر نکړي چه :- که په ميوند کې شهيد نشوې . خدايږو لاليه بې ننګۍ ته دى ساتينه.

نو افغانستان ته يې مخ راواړاوه د خپلې وينا په جريان کې يې خپل
تجاوز ګنا وباله او يادونه يې وکړه چه " دې خاورې ته چه څوک د
غلامۍ په نظر ګوري او غواړي چه ځان ورباندې د يوه بادار په حيث
ومني نو يوازې به ترينه هغه څه په خپله پيښکه پورې غوټه
راوړي چه ماته نوميږي خصوصا د لوئين امپراطورۍ ماته "

په تیرو څه د پاسه دوولسیزو کې د افغانستان د خلکو برسیره د هیواد کانی . بوټی اوان تردی چه هر څه د بـی سـاری بربـادی او ویجـاړی شاهدان دی . د نوری ویجاړی تر څنګ د جنګ او جګړو لـه کبلـه ډیرو ځوانانو د خپل بدن خواږه او نه جلا کیدونکی اندامونه لـه لاسه ورکړل .

که څه هم په هیواد کې د معیوبینو د حقیقی شمیرې او د معیوبیت د عواملو په اړه لا تر اوسه کومه هـر اړخیزه سروی نده تر سره شوی خو ځینی محلی سروی ګانی چه تر دې دمه تر سره شوی د یوی بلی په ترتله په ډیر لوی توپیر خپلی شمیرنی وړاندی کوی د بیلـګی پـه تـوګه د ملګرو ملتونـو د افغـان معیوبینو لپاره د هر اړخیزی پروژی دفتریا ( UNCDAP) په خپلو یو شمیر چاپ شـوو اثـارو کـې لیکلـی چـه افغانسـتان پـه مجموعـی ډول اتـه سوه زره معیوبین لری . دلته باید یادونه وکړم چه دغه معیوبین بیا ورسته د معیوبیتونو د څرنګوالـی له مخی په پنځو عمده برخو ویشل کیږی

۱- د ژبی معیوبیت ( ګونګیان ) ۲ - د سـترګو معیوبیتونـه ۳- د غوږونـو معیوبیتونـه ۴- د پښـو معیوبیتونـه ۵- د لاسـونو معیوبیتونه . خو دغه شمیرنی بیا ځینی نوری شمیرنی چه تر دی لا پخوا تر سره شوی په ګلکه ردوی د بیلګی په توګه په ۱۹۹۲ میلادی

کال کې د دار السلام په نامه یوی غیر دولتی موسسی د هیواد په ختیځو ولایتونو او ځینو نورو سیمو کې سروی تر سره کړی




او د خپل کار د بشپړیدو وروسته یې معلومات ورکړل چه په افغانستان کې یوازی هغه معیوبین چه پښی یې غوڅې دی او یا هم د روغتیایی خدمتونو د نشتوالی له

امله د یو شمیر هیوادوالو او په تیره بیا د ماشـومانو ځینـی غـړی لـه فعالیته لویدلی شمیره یې نژدی یو ملیون ته رسیږی

دا مهمه ده چه د معیوبینو لپاره د بیارغونی د پلان جوړولو پر مهال د معیوبینو واقعی شمیری او موجوده ستونزی باید په پوره ځیر کی سره په پام کې ونیول شی خو دغه کار هغـه وخت شونی بریښنی چـه پـه هیواد کې سرتاسری دایمـی سوله تینګه شی . د هیواد په هغو سیمو کې چه لا اوس هم د ماینونو خطر پکی موجود دې پـاکې شـی او ټول افغانی کډوال بیرته خپل وطن تـه راستانه شی
پـه اوسـنی مـهال کـې د افغـانی معیوبینو لپاره د ملګرو ملتو او یو شمیر نوری بین المللی او افغـانی مؤسسـې د بیـارغونی پـه کـار او فعالیت بوختي دی خو د بیـارغونی دغـه خدمتونـه نـه یـوازی دا چـه د معیوبینو د اړتیا په تناسب ناکافی دی بلکه د موسسو پـه فعالیتونو کې د هم غږی د نه موجودیت لـه کبلـه داسـی نـه بریښـی چـه د معیوبینـو زیـاتی سـتونځی دی ورسره حل شی
کیدای شی د معیوبینو د بشپړی بیـارغونی لپـاره ډیـرو وسـایلو او بودیجی تـه اړتیـا وی خو دا چه پـه موجوده وخت کې د معیوبینو لپـاره پـه کافی اندازه اسانتیا وی نـه دی برابری شوی نو ښایی یو عمده علت یـې د موسسـاتو تـر مینـځ د هماهنګی نشتوالی وی

معیوبین په عمومي ډول د زیاتو اقتصادي ستونزو او مناسبو کارونو د نشتوالي له کبله د ډیرو کړاوونو سره مخ دي . د بلې خوا د ټولنې منفي چلند هم ډیر خورونکی او ظالمانه دی او ان تر دې چه د ګوډ . شل داسې نورو او یا ترډې لازیاتو په نورو سپکو نومونو یې یادوي او کله ناکله خو داسې هم پیښیږي چه معیوبین د ټولنې په اوږو بار ګڼل کیږي او عام نظر هم داسې دی چه بس سړی چه معیوب شو ، نو بیا هغه د نور څه کار نه دی .دلته به بی ځایه نه وی که یادونه وکړم چه زموږ ټولنه یوه با همته او زیارکښه ټولنه ده او معیوبین هم د دغې ټولنې یوه برخه ده نو ځکه په یقیني ډول ویلی شم چه که د کار مناسب شرایط او وسایل معیوبینو ته برابر شي نو خپل ورځنی کارونه په پوره بریالیتوب سره سرته رسولي شي .

زما په عقیده د معیوبینو لپاره د مناسبو مصروفیتونو نشتوالی . اقتصادي ستونځی او د ټولنې منفي چلند معیوبین دې ته اړباسي چه په نورو تکیه وکړي او دغه حس یې د وخت په تیریدو سره ورو ورو وده کوي . د کار استعداد په تدریجي ډول له لاسه ورکوي او باالاخره په روحي ستونځو اخته کیږي او یا خو د دې لپاره چه څو شیبې یې د خپلو غمونو سره خدای په اماني کړي وي نو د نشه یي توکو کارولو ته لاس اچوي او په دې توګه د نشه یي توکو په خوړلو . څکلو اویا په نورو لارو د دغو نشه یي توکو په کارولو روږدي کیږي .

د دې لپاره چې معیوبین د ټولنې پر اوږو بار نه شي او خپل هیواد په بیا ودانولو کې فعاله ونډه واخلي او همدغه راز د لا زیاتو معیوبیتونو څخه نیول شوي وي نو باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي .

۱- معیوبین چه د بیارغونې خدمتونو ته اړتیا لري د بیارغونې لپاره یې عملي ګامونه پورته کول .

۲- معیوبین په مناسبو کارونو ګمارل تر څو پخپله د خپلو خانونو او کورنیو لپاره حلاله نفقه پیدا کړي .

۳- هغه بین المللی او افغانی اداری چه د معیوبینو د بیارغونې په برخه کې کار کوي . خپل کارونه دی معیوبینو ته د لا زیات خدمت په خاطر سره هماهنګ کړي .

۴- د سالمو خپرونو له لار دی د معیوبینو په مقابل کې د ټولنې دمنفي چلند د بدلولو هڅې وشي .

۵- هغه سیمی چې لا اوس هم د ځمکنیو ماینونو خطر پکی موجود دي د پاکولو په اړه دی عملي هڅې وشي

۶- د ساروغیو کنټرولول تر څو د مړینې او معیوبیت سبب ونه ګرځي .

۷- د سړکونو بیا جوړول او هغه شمیر نقلیه وسیلې په قطعي ډول غیر قانوني اعلانول چه د افغانستان د ترافیکي قوانینو له مخې د ګرځیدو اجازه نه لري تر څو د ترافیکي پیښو او په هغو کې د مړینې او معیوبیت خطرونه راکم شي .

لکه چه ټولو ته جوته ده افغاني معیوبینو د خپل بدن د خوږو غړو په بدل کې د افغانانو شمله جګه ساتلې او نه یې دی پریښې چه دغه شمله ټیټه او یا هم ګردجنه شي . د هیواد په غرو رغو او دښتو کې یې کلونه کلونه په لوږه او تندې شپې او ورځې تیرې کړي او د وطن په ازادي کې یې فعاله ونډه اخیستې خو اوس پوښتنه دا ده چه د دغو معیوبینو اوسني او راتلونکې حال به همداسې وی ؟

هغه هیوادوال چه د پیښور نه افغانستان ته او یا هم د افغانستان د تورخم په لویه لاره تګ او راتګ کوی نو د پولې په دواړو غاړو کې به یې د معیوبینو زړه دردونکی حالت هرومرو ترسترګو شوی وی چه د سپړو سختو اوفزیکي شکنجو په ګاللو سره د سون او خوراکي توکی د پولې د یوې غاړې نه بلې غاړې ته انتقالوي .

لنډه دا چې که باور ده او با احساسه خلك د افغاني معیوبینو د ژوند د ستونځمن حالت په بدلون کې نوره مرسته نه شي کولی نو کم تر کمه د قلم په خوږه ژبه خو دی یادونه وکړي تر څو د دې لارې یې غږ د هیوادوالو او نړیوالو غوږونو ته ورسیږي .

په درنښت



ا- اتل




# د ژباړې په باب څو څرګندوني

**تاکل شوې وه دا لیکنه دهیلې مجلې د ۱۳۷۹ ل . کال په دویمه ګڼه کې خپره شي ، خو د هیلې مجلې ادارې یې له خپراوي څخه ډډه وکړه . دا دی دلته یې په کندهار مجله کې خپروم .ا- اتل**

د هیلــې مجلــې د ۱۳۷۹ل کــال د لومړۍ ګڼې په (۷۶-۹۲ ) مخونو کې مې د ښاغلی محمد داؤد وفا له خوا زما د لیکنې د [ افغانستان لنډ تاریخ چا ژبـاړلی ؟ ] ( یــوه ژبـاړه او دوه ژبـاړن ) پـه بـاب یـو تونـد غـبرګون ولوسـت . ښاغلی وفـا زمـا لیکنـه د عقدې او کینـې زیږنده ګڼلې وه ، خو داروا پوهنې له مخې د عقدې او کینې خبره چې په خپلـه د ده په روان کې نغښتې وه . دده لیکنې له منځپانګې نه جوته شوه . " د ده د لیکنې سرلیك او د ده انځور سره غاړه غړۍ شوي وو . لـه لیکنې نـه یې داسې څرګندیږي چې ته واتوره یې له تیکي راکښلې او همدا وایي چې څه شو هغـه اتـل ؟ " اتلان خو د نارینه وو په څېر میدان ته راوځي او هر څه په ډاګه ترسره کوي دریغ یې غـوڅ وي او ګوزار یې هم پرېکنده ، د پردې ترشا ګوزارنـه کوي . خو دا چې ښاغلی -اتل لـه خپلې اتلولۍ سره سره ډاریدلی او مستعار نوم یې لیکلی ، دلته نو سړي ته د ده پر اتلولۍ شك پیدا کیږي او دا متل د سړي ذهن ته دریږي چې " دغلـه پـه ږیره خلی دی " او همداسې تر ۴۵ ځلو پورې د اتل نوم کاروي او توره پـه لاس وریسی ګرځي .

خو زه ګران وفا صاحب تـه وایم چې ما تاسـو تـه د غیرې نیولـو او تـورې چلولـو چلنج نـه دی درکړی او نـه ستا له درانه شخصیت او ځانـي ژوند سـره زما څه کارشته او نه دې هـم لیکنې دومره په پټو سترګو ستایم لکه درانـه استاد محمدآصف صمیم چې د بینوا صاحب غونډې د لویې هستۍ خواري یې ستاسو د لنډ مهالې خوښۍ لپاره پر اوبو لاهو کړې ده . زه نه پوهیږم چې استاد د کـوم لامل لـه مخې دا لیکنـه کړې . هغه خـو پـه لیکنه کې چاتـه لـه یو (په) او (پـر) څخـه نـه تېریږي ، نو د دومره لوی کتاب پرېډه وهلو یې ولې سترګې پټې کړې دي ؟

ماتـه مسـتعار نـوم پـه دې غـوره وبریښېږ ، چې د لیکوالـۍ لـه کبلـه زما او ستاسو دوستي ده . انتقاد خوبې له دې هم نـه شو زغملای ، نـه یوازې نه یې شو زغملای ، بلکې د دښمنۍ برید هم نیسو ، خو د دې لپاره چې زما او ستاسو شخصي دوستي ټپي نه شي ، نـو مسـتعار نـوم راتـه غـوره وبریښېد . زه په دې پوهېدم چې تاسو د خپلې دې نیمګړتیـا او تیروتنې ( د پردۍ ژباړې راخپلول ) د پټولو لپاره د دود پـه څېر زیاتې خبرې پر لیکوال کوئ نه پر لیکنه .

ښه دې چې تاسو هم دا دود پر ځای کړ ، که زه خبر وای چې تاسو ښاغلی زما اتلولـــي ازمویـــي او د څنګزنـــو موضوعګانو پـه طرح کولـو سره آره

موضوع پټوي . نو مابه هم کېدای شول د لیکنې بڼه بدله کړې وای او یا به مې د الفت صاحبٔ په دې شعر داستاد محمد اصف صمیم لاسنیوی کړی وای چې :

هر چا چې هر څه کول ته به صفتونه کړې
هر یو به لقمان کنې دلته که اوسیږې ته
ورځې ته به شپه وایې چا که ورته شپه وبلې
تور به سپین شیان کنې دلته که اوسیږې ته

خو مانه پر حقیقت خاورې اړولای شوې . نه د استاد بېنوا پر کړې خوارۍ . نه د هغه د نثر پر خوږلنې او علمي شخصیت او نه مې هم پر هغه د چاپېري زغملای شو . نو ځکه مې د خپل احساس او مسئولیت له مخې دا لیکنه وکړه .

زه خو وایم کاشکې دایراني لیکوال " زرینکوب " پر کړېنو عمل شوی وای ، نو [ د ادبي پنځونو د اتلولې ، بوس بادول او نورې خبرې به نه وې لیکل شوې ] یوازې به دا سپینه شوې وای چې ( آیا تاسې درانه دا ژباړه کړې او که نه ؟ ) .

دا سمه ده چې د کره کتنې موخه د یو اثر د ښېګڼو او بدګڼو راسپړلو ته وایي . خو دا آرپر هغه کتاب او لیکنې نه تطبیقیږي چې د بل چا کتاب او کار یې پر خپل نامه خپور کړی وي

زما د لیکنې اصلي موضوع دا ده چې دا کتاب تاسې ښاغلی نه دی ژباړلی . بلکې د دې کتاب د ژباړې خاوند بل څوک استاد بېنوا دی . نه تاسې وایي " زه دې په پیرۍ کې شك لرم . ته ځان ته مریدان نیسې . "

زه وایم دا کتاب بل چا ( استاد بېنوا ) ژباړلی ، تاسو یې د ښېګڼو او بدګڼو ارزول او تلل غواړۍ . دا منو چې تاسې به په کې څه زیاتو نې کړې وی ، خو کاش چې خپله کره کتنه ، لمنلیکنه ، سمون او نښلونه مو ورسره مله کړي وای او خپل نوم مو پېرې د حاشیه لیکونکي ، کتونکي او نښلوونکي په توګه لیکلی وای . زموږ مشرانو هم دا کار کړی او همدارنګه په خېړنیزو لیکنو کې هم ورته اړتیا ده .

تاسې په خپله لیکنه کې هغه جملې او ترکیبونه په ګوته کړي چې ستاسو نوم په کې راغلی و . خو خپلې هغه جملې او کلمې درنه هېرې دي . چې زما نامه ته مو حواله کړې وې . زه نه غواړم چې د څنګزنو موضوعګانو په وړاندې کولو سره له آرې موضوع نه لرې شم او د هغه چا لاز خپله کړم . چې د خپلې لیکنې پرتنده او یا منځ کې د فلاسفوو او نورو د جملو په نښلونو سره له آرې موضوع څخه لرې کیږي او لوستونکي دوهم په ټال زنګوي . دا هم نه غواړم چې ستاسې د اوږدې لیکنې هره کرښه څواب او لوستونکي پرې ستومانه کړم . ځکه چې ستاسو د لیکنې ډېره زیاته برخه زما له فرضیې سره هیڅ اړه نه لري .

تاسو لیکلي چې ( د افغانستان لنډ تاریخ ما ژباړلی ) او د دې کار د علت لپاره مو د ځینو هغو اثارو جدول وړاندې کړی چې څو ځلې د څوکسانو له خوا ژباړل شوي دي . دې جدول ته خو ځکه اړتیانشته چې زه نه وایم د یو کتاب څو ژباړو ته اړتیا نه شته ، بلکې زما موخه دا ده چې له ژباړې نه

ژباړې ته اړتیا نه شته او دا کتاب هم تاسو له آرکتاب څخه نه دی ژباړلی ! بلکې د استاد بېنوا په ژباړه کې مو له لاسوهنو او ناپېښتو لفظونو پر ځای د پېښتو هغو ترکارونې او ادلون بدلون وروسته پر خپل نامه خپور کړی دی . غواړم چې ستا سې د اوږدې لیکنې په پام کې نیولو سره خپلې خبرې د یوې فرضیې په توګه له ځینو دلیلونو سره وړاندې کړم.زما فرضیه دا ده :

***د افغانستان لنډ تاریخ استاد بېنوا ژباړلی او ښاغلی محمد داود وفا د هغه په ژباړه کې له لاسوهنې او د ځینو ناپېښتو ویپونو پر ځای د پښتو هغو ترکارونې ، ادلون بدلون وروسته پر خپل نامه خپور کړی دی .*** د دې فرضیې د زبات لپاره دلایل داوي

۱- د متنپوهنې د اصولو له مخې په تولیز ډول د دواړو متنونو جوړښت سره یو شان دی .

۲- د جملو جوړښت ، سکښت او چوکاټ یو ډول دی .

۳- د جملو د وییونو شمېر سره تر زیاتې کچې برابر دی چې په تېره لیکنه کې یې ځینې بېلګې راوړل شوې دي . بیا یې نه تکراروم

۴- د ښاغلي وفا د وینا له مخې یوه بله ژباړه هم ده نه د سمون ( تصحیح ) لپاره ورکړل شوې وه ، ده دا ژباړه د استاد بېنوا له ژباړې او آرکتاب سره پرتله کړې او تر پرتلې وروسته یې د ګندهارا مجلې ( ۱۳۷۷ ل کال پرله پسې اوومه ګڼه ) کې په دې باب یوه

لیکنــه هــم خپــره کــړې ده . پــه دې حساب نو د ښاغلي داود وفا ژباړه د همدې کتاب دریمه ژباړه ده . یانې دا چې ښاغلي وفا تـه د دې دوو ژباړو تر پرتلې وروسته دا فکر پیدا شوی او بیا یې دې ژباړې (!) ته ملاتړلې ده کـه چیرې ده خپلـه ژباړه تـر هغـې دویمـې ژباړې (دکـرزي صـاحب تـر ژباړې) دمخه کړې وای . نو د بېنوا صاحب له ژباړې سره پرتلنې ته یې څه اړتیا وه ؟ باید د خپلې ژباړې لـه مخې یې پرتله کړې وای او بله دا چې ښاغلی صحاف صاحب ته یې هم دا ویلـي وای چـې دا کتـاب خـو مـا د ښاغلی کرزي تر ژباړې دمخه ژباړلی . نو بلې ژباړې ته یې څه اړتیـا ده ؟ همدا چاپ کړه . حقیقت دا دی چې دا اوســنی کتــاب لومــړی ځل پــه ایشیاسافټ دفتر کې کمپوز شوی ، د ښاغلي کرزي نـوم پـرې د ژبـاړن او د ښاغلي داود وفا نوم پرې د سموونکی او کتونکی په توګه لیکـل شوی ، خو دا چـې د صحـاف صـاحب او وفـا صاحب تر منځ د دې کتاب د سمون حق الزحمې او وخت د اوږدوالی پر سر ستـونزه او لانجـه پیـښه شـوه او د ښاغلــی نورالرحمــن لــېوال پــه منځګړیتوب بیا تـر یـوه حده غـوڅه شوه ، نو ښاغلی صحاف د دې کتاب کمپوز شوی متـن (تـرس کـاغذ) لـه ځان سره کوټې ته یووړ . د حفیظ الله غښتلــی د څرګندونــو لــه مخــې " وروسته بیا همدا کتاب د ښاغلی وفـا له خوا په ډسکټ کې دانش کتابتون تـه یووړل شو " د کمپـوزر ، ژبـاړن او خپروونکې ادارې نومونه یې ټول نـوي شول .

د یادونې وړ ده چې همـدا کتـاب د کـرزي صـاحب پـه نامـه د حمـدالله صحـاف ورور ښاغلــی ســمیع الله صحاف هم خپور کـړ . خـو کلـه چـې دانش خپرندویه ټولنې خپراوه . نو بیا یې پـه کـې یـو شـمېر هغـه نـا پښتـو لغتونـه هـم پښتـو کـړل چـې د کـرزي صاحب په ژباړه کې د وفا صاحب له لاسوهنې څخه خوندي پاتې وو . بلـه خبره دا ده چې پر دې کتاب باندې د ښاغلــی نجیــب الله وصــال نــوم د کمپوزر په توګه لیکل شوی خو هغه په ګرني ډول څرګنده کړه : (( کله چې وفا صاحب دا کتاب په ډسکټ کـې راوړ ، نو نوموړي یوازې ځینې لغتونه په کې بدل کړل ))

څرنګه چې دوی هڅه کوله دا ژباړه (!) د کرزي صاحب له ژباړې سره لږترلږه پر یو وخت او آن تر هغه لا دمخه چاپ شي ، نو ځکه یې د یو شمیر لغتونو بدلـون تـه لاس ونـه رسـیده او د دې خـبرې د پټولـو لپـاره یـې بیـا یـوه ځانــګړې یادونــه ولیکلــه چــې د پښتونې ښښنه اوپلمه ګڼل کېدای شي . دا خبره هم د غور وړ ده چې د ښاغلي حمــدالله صحــاف د څرګندونــو او ښاغلي وفا د لیکنې لـه (کندهـارا . ۱۳۷۷ ل . اوومه ګڼه ) مخې تقریبا یو نیم کـال وړانـدې یـوه ژبـاړه ده تـه د ایډیټ لپاره ورکړل شوې وه ، چې تر ډېرو جرګو مرکو وروسته د دې ژباړې یو کمپوز شوې کاپي وفا صـاحب . صحاف صاحب ته وسپارله چې پر دې د کرزي صاحب نوم د ژبـاړن او د داود وفا نـوم د سموونکي پـه تـوګه لیکـل شوی و . خو دی بیا هم په خپله لیکنه کې ځان ناګاره اچوي او د هغې ژباړې

د خپرېدو خبره هیڅ نه کـوي . لیکي " (ماسـه لـه څو خلونــه ډیــر حمــدالله صحاف لـه کوټې نـه تلیفونونـه کول . چې ګوره د " زیاربزم " تله به په کې نـه درنـوې او پـام کـوه . مـا دا کتـاب لومـړی ځل د یوبـل چـا لپـاره لـه دې امله په اسانه پښتو ژباړلی (!) چـې هغه په نوې پښتو نه چاپاوه (!) . خو چې هغـه چـاپ نـه کـړ . نـو ښاغلـی دانش راته ووې چې په خپله خوښه یې پښتو جوړه کـړه . هـر ډول چـې ستـا خوښه وی . ځکه نو ما په بدلون پسـی قلم راواخیست . . ) دی پر هغـه ژبـاړه چې حمـدالله صحـاف د ایډیټ لپـاره ورکړې وه سترګې پټوی او وایي چې د لومړی ځل لپاره یې په اسـانه پښتـو ژبـاړه کـړې وه . خـو تـر دې وړانـدې خبرې ته یې پام نه دی چې ویلی یې وو ، یوه بله ژباړه یې د بېنوا د ژباړې او آرکتاب له مخې سموله . خو اوس دې وفـا صـاحب دا راتـه ووایـي چـې صحـاف صـاحب تـه تاسو خپلـه ژبـاړه کړې وه او کـه د کـرزي صـاحب ژبـاړه هې د اسـتاد بېنـوا د کتـاب پـه رور ایډیټ کړې وه ؟ لـه صحـاف صـاحب سره دې د کومې ژباړې پر سر د حق الزحمې ستونزه وه ؟

**۵**- ښاغلي وفـا د ګندهـارا مجلې او د کتـاب د خپریـدو تـر منـځ واټن اووه میاشتې ښوولی او پوښتنه یې کړې ، چې په دومره وخت کې یـو سـړی ژبـاړه (!) نه شي کولی ؟

کولای یې شي او کېدای شي چې په دومره وخت کې یې خپـور هم کړي (!) او بیا د ښاغلی وفا غونډې استعداد ، خـو کاشـکې داسـې مجلـه یـې د مهالیز دلیـل پـه تـوګه راوړې وای چې

پر خپل وخت خو خپره شوې وي ، دې په داسې مجله ( ګندهارا ) حواله ورکوي چې په همدې ګڼه ( ۱۳۷۷ل لېندۍ- مرغومې ) کې يې د بناغلي عبدلغفور لېوال يو نظم ( يوه شنه دره د مينې ) چې د همدې کال د دلوې پر اوومه نېټه ليکل شوی . خپور شوی دی ، داچې دا شعر تر مجلې رارسيدلی څومره وخت به يې نيولی وي ؟ د همدې کال ۱۳۷۷ل په سلواغه او کب ګڼه کې يې د کتابونو د معرفي په لړۍ کې هغه کتابونه هم معرفي کړي چې د مجلې تر خپرېدو يو کال وروسته خپاره شوي دي . لکه : دحمزه بابا د کابل منظومه سفرنامه : دسمبر ۱۹۹۹م کال د عبدالمنان ملګري شريك بالاپوش - ۱۳۷۸ ل د حبيب الله زړه سواند سپينه کوتره ۱۳۷۸ل . د تنګ داودزي سپينې خبرې ۱۳۷۸ل کال او نور .....

تولو ليکوالو ته پته ده چې که د ګندهارا مجلې په تولو ګڼو کې د وفا صاحب نوم د کتونکي او مرستيال په توګه نه دی خپور شوی . خو د زياتو ګڼو د چاپ چارې د ده پرغاړه وې . خو دی وايي چې په ګندهارا کې دې زما نوم راونبيسي . مانا دا چې له ګندهارا مجلې سره يې هيڅ کار نه دی کړی . د ګندهارا مجلې د لومړي کال په لومړۍ ګڼه او د ۱۳۷۹ل کال په پرله پسې لسمه ګڼه کې خو د کتونکو په لست کې ( داود وفا ) ليکل شوی . نه پوهېږم دی ترې بېخبره دی او که هسې په لوی لاس يې په هيڅ کې ضربوي او که له دې ژوندي سند څخه هم انکار کوي ؟ استاد محمد اصف صميم صاحب بايد ... د خپل "خلف" د هغه انکار پر صداقت هم بنه قضاوت وکړي چې وفا صاحب د افغانستان لنډ تاريخ په ژباړه کې پر خپلې درغلۍ باندې د پردې اچولو لپاره په ګندهارا مجله کې له خپل کړي کار نه هم چور انکار وکړ . افرين دې پر دې جرئت . اوس نو درانه لوستونکي هم بنه قضاوت کولای شي . يو څوك د خپل عيب پټولو لپاره له خپل کړي کار نه انکار کولای شي . نو د بېنوا صاحب او نورو له کارونو څخه يې خو خود کولا شي

۶- د متنپوهنې له مخې د بناغلي وفا ژباړه هيڅ امکان نه لري چې د بېنوا صاحب له ژباړې سره اړيکې ونه لري . آن که دې خپله دا کتاب له سره وژباړي . نو د ده په وينا د ده په نامه له اوسنۍ ژباړې سره به يې هم په لغوي . هم په نحوي او هم په متني جوړښت کې ښکاره او زيات توپير ترسترګو شي . خو اوس د بېنوا له ژباړې څخه څه کوم زيات توپير نه لري چې د هغه په متن کې يې يوازې يو شمېر الفاظ بدل کړي دي . که چېرې د الفاظو په بدلون سره يو څوک د يو کتاب ژباړن کېږي . نو اوس به يو تول زاړه کتابونه او متنونه بدل کړو . وروسته يې پر خپل نامه خپاره کړو . درانه لوستونکي کولای شي دواړې ژباړې د نحوي جوړښت او متنپوهنې له مخې سره پرتله کړي

په فرهنګي کار و زيار کې د ځوان او ځانګړي ليکوال بناغلي وفا له ځو او هاند نه سترګې پټېدای نه شي ، زه ورته بنه روښانه راتلونکې فرهنګي ژوند غواړم . خو د پورتني واقعيت بيان ته ځکه اړ شوم چې نن د وفا صاحب غونډې يو تکړه ليکوال ، د بېنوا صاحب پر کار خاورې اړوي . سبا به بل هم همداسې د ده پر کار خاورې اړوي

نور نو درانه لوستونکي په وه شه او قضاوت

**يادونه : د کندهار مجله دنقدونو په خپرولو کې تل پر خپل بې طرفه دريځ ټينګار کوی او هيڅ نقد د مجلې د ادارې د نظر څرګندونه نه کوی . بلکه دا د ليکونکي خپل نظر دی . که تر نقد لاندې ليکوال يا کوم بل لوستونکی يې ځواب راليږي د مجلې اداره به يې په ورين تندي ورته خپور کړي . خو که د چا پر شخصيت تيرې پکښې نه وي او د قلم د عفت خيال پکښې ساتل شوی وي .**

په درنښت

د کندهار مجلې اداره



داکتر کمال سادات " سورانی "



# ینه (LIVER)

اینه د بدن تر ټولو لویه غده ده چې وزن یې 5kg ته رسیږي چې د Diaphragm لاندې وروسته طرف ته موقعیت لري او ټول هغه مواد چې د کولمو نه جزب کیږي په استثنای د شحمي موادو چې زیاتره برخه یې د لمفاوي سستم پواسطه انتقالیږي نور ټول مواد ایني ته داخلیږي د اینې د وظایفو څخه یو هم د وینو د ګلوکوز ذخیره په اینه کښې د aliogen په شکل ده همدارنګه د شحمي موادو په میتابولیزم کښې هم حصه اخلي څکه چې شحمي مواد په وینو کښې د Lipoprotien په شکل قرار لري چې دا ماده د اینې پواسطه تولیدیږي په اینه کښې د ویتامین vit A , vit B او Heparin ذخیره هم صورت نیسي . همدارنګه د صفرا په افراز سره د یوی خوا د غذایي موادو په هضم کښې حصه اخلي او بلې خوا یو تعداد صفرا وي مالګې او اضافي موادو خارج ته اطراح کوي . همدارنګه یو تعداد پروتین مواد لکه Albuming او Fibrinogen هم د اینې پواسطه وینې ته داخلیږي او د Cholesterol په تولید کښې هم سهم اخلي همدا ډول اینه د مضرو موادو په غیر سمي کولو یا Detexification کښې هم برخه اخلي او جیني دوره کښې د Hemopoiesis وظیفه پر غاړه لري.

د ایني هغه برخه چې د هغه نه صفرا وي قناتونه خارجیږي او Art-Hepatic او Portalvein د ایني د سرې یا Portahepatis په نوم یادیږي اینه د نسجي ساختمان له نظره د Stroma او parenchyma نه جوړ شویده چه په لاندې ډول ده .

۱- Stroma : د ایني د نظم نسج د یوه لیفي کپسول پواسطه چه Capsuleglisson نومیږي پوښل شویده چه دا ده کپسول نه یو تعداد نازك حجابات نشا اخلي چې په پیل کې اینه په Lobes او بیا په Lobule باندي ویشي چې د احجابات د سرې د لاري وایني ته داخل او د Portalarea د منضم نسج سره وصل کیږي . دا منضم نسج د کولاجن الیافو او فبرو بلاست نه جوړ شوی اما د Lobule په دننه کښې یو تعداد شبکوي الیاف او کولاجن الیاف Sinu Soide په شاوخوا او Disse Space کښې وجود لري . د ایني د کپسول زیاته برخه د پریتوان پواسطه پوښل شوی ده صرف په هغو برخو کښې چې اینه د Diaph ragm او یا د مجاور اعضاؤ سره تماس ولري پریتوان وجود نلري .

۲- Liver parenchyma : د ایني د پرانشیم ساختماني واحد Liver lobules یا Hipatic Lobule دی . دا لوبول په عرضاني مقطع کښې د یو شپږ (۶) ضلعي ساختمان په شکل واضع دی . خو په عمومي صورت سره په هر Lobule کښې دا لاندې ساختمانونه لیدل کیږي

A - Cintralvein : د وریدونو د لوبولو په مرکزي حصه کښې قرار لري او کبهي وریدونه ډیري کوچني بناخې دي چه کله د لوبول نه خارج شي Cub-Lobularvein تشکیلوي چې بالاخره یو د بل سره یو ځاي کیږي او Hepaticvein جوړ وي او Vera cavainferior کښې تخلیه کیږي .

B- Hipatocytes : د برانشیم حجرات یا کبري حجرات د یو تعداد صفحاتو په شکل ( Hepatic plate ) د مرکزي ورید په شاوخوا کښې په شعاعي ډول قرارلري . چې هر Hepaticplate د Hepatocytec د دوو قطارونونه چې د یو بل سره په

تماس کښي دی جوړ شوی . او د اینې برانشیم ته یې د یوه اسفنج منظره ورکړې ده کبدي حجرات څو حجروي حجرات دي چې شپږ (۶) سطحې لري چې اکثرا د یوې هستې درلودنکې او بعضې اوقات دوې هستې لري او حجراتو په سایتو پلازم کښې یو زیات مقدار د glycogen او شحمي موادو Vacules لیدل کیږي ګولجي جهاز هستې ته نژدې او مایتو کاندریا په ټول سایتو پلازم کښې په منتشر ډول قرار لري د کبدي حجراتو آزاده سطحه د Sinusoide سره تماس کښي ده او د Sinusoides وجدار څخه د وینار فضا پواسطه چې Space of Disse او یا Perisinsoedal space په نوم یادیږي فاصله لري کبدي حجرات پدې سطح کښې microvilli لري . اما د کبدي حجراتو هغه سطح چې د بل کبدي حجري سره په تماس کښي ده یو تعداد ساختمانونه د Bile canalicule په نوم جوړ وي چې په هغه کښې د کبدي حجراتو صفرا تخلیه او بیا د نورو قناتونو پواسطه د جګرنه خارجیږي .

۳- Sinusoides : دا سینو زوئید د Hepatec pcates په فواصلو کښې قرار لري او په حقیقت کښې یو غیر وصفي Capillary ده چې کبدي لوبول ته وینه رسوي . د دې سینو زوئید وینه د Hepatecart او د partal شعباتو چې په Portal area کښې قرار لري منشه اخلي ، یعنې په سینو زوئید کښې د ورید باب او کبدي شریان مشترکه وینه لیدل کیږي چې د لوبول د محیط څخه د مرکزي ورید خوا ته سیر لري او د Hepatic Vein پواسطه د کبد نه خارجیږي .

د سینو زوئید په جدار کښې دوه نوع حجرات لیدل کیږي ، یو Endothelium چې حجرات ئې په غیر منظم ډول د سینوزوئید په داخلي سطح کښې قرار لري او د یو تعداد سوریو او Pinocytic vesicles درلودونکې دي . چې دا دی لاري نه د موادو تبادله په اسانی سره صورت نیسي . دوهم نوع جرات د Kupper cells په نوم یادیږي چې نسبتا غټ حجرات دي ، او د هغه استطلات سینو زوئید ته داخلیږي او د Phagocytosis وظیفه په غاړه لري ، که څه د سینو زوئید او کبدي حجراتو په مینځ کښې د Disse مسافه وجود لري ، خو بیا هم د " E.M " معاینات ښودلې ده چې د سینو زوئید او Disse مسافه په مینځ کښې کومه مانعه وجود نلري او کبدي حجراتو سطح د پلاسما سره په مستقیم تماس کښې ده . یعنې د Disse مسافه یو intorstital مسافه ده چې یو مقدار Collagenاو شبکوي الیاف لري او علاوه د هغه نه یو کم تعداد میرانشیم حجرات هم پدې مسافه کښې لیدل کیږي چې ممکن په جنین دوران کښې د Hempoieses مسئولیت په غاړه ولري .

۴- Portal area : دا مسافات د کبدي لوبول په زاویو کښې قرار لري چې دا مسافه د منظم نسج پواسطه احاطه شوې او په هغه کښې د کبدي شریان شعبات د ورید باب شعبات ، صفراوي قناتونه او لمفاوي رګونه وجود لري چې lymphatic capillaryاکثرا د Disse مسافې نه منشه اخلي او د لوبول محیط ته سیر کوي حال دا چې د ورید باب او شریان کبدي وینه په سینو زوئید کښې د لوبول د محیط څخه د ورید مرکزي خوا ته جریان لري .

دا پورته ټول ساختمانونه د کبد په کلاسیك لوبول کښې قرار لري ، خو د کبد د عملي توضیح کولو د پاره نور معیارونه هم وجود لري چې د Portatl lobules په نوم یادیږي چې دا د لوبول مرکز Partal area او په زاویو کښې یې مرکزي وریدونه لیدل کیږي خو د پتالوژي له نظره د کبد ضایعات د هغه د وینو په جریان پورې ارتباط نیسي نو پدې اساس اوس د یوه کوچني ساختمان واحد څخه چې Liver acinus نومیږي کار اخلي ، چې د وظیفوي واحد یا Fanctional unit نوم یادیږي ، دا ساختمان په عرضاني مقطع کښې لوزي شکل لري چې دوه مرکزي وریدونه د هغه په دوه متقابلو قطبونو او د Portal area د رګونو شعبات دا د لوزي د مینځ نه تیریږي .

ماخذونه :


۱ هستولوژي بلخ پوهنتون
۲ هستولوژي افغان پوهنتون "پیښور
۳ هستولوژي کابل پوهنتون




## ودانۍ

جلال خپلواک

ستا عشق ته تینګیدای نشي د زړونو ودانۍ
د باد په مخ کې څه وي د ګلونو ودانۍ
اشنا که سړي ډیر وی عدالت دي هم پکار
د یوه نیم پاتې کیږی په قبرونو ودانۍ
ظالم به بیرته لاړشي خو طاقت یې ماتوم
وطن کې مو شته ډیرې دبر جونو ودانۍ
هر ښاري د ښکلا لال شو له ښاماره اخی لال
هر چاچې ورانولې د قومونو ودانۍ
جلاله دا به واړه د سالار مخی ته وړم
له ګلو مودي ډکې د کورونو ودانۍ

## مینه

ملا عبدالهادی (حنیف)

هر څه مې وکړو خو ته نوي یاره
اوس به په چا پسې دنیا لټوم
د مینې اور مې په زړګی بلیږی
د مړ کیدو یې تمنا لټوم
د فراقت لمبو سوځلې یمه
د وصل شپه یې په ژړا لټوم
چې مې زخمونه د زړګي ناسور شول
اوس به له چا سره دوا لټوم
چې د حنیف یې آرزوګانې مړی کړی
د وفا هیلې به له چا لټوم

محمد ابراهیم "سپیڅلی"






یا الهی ! ته قبولې مو زاری کړې
رانه لیری د دنیا سختي خواری کړې
خلاند لمر د اتفاق راته عطأ کړی
رانه ورکې د نفاق دا تاریکی کړې
د خوښۍ سپرلی مو راولې ګلبڼ ته
د زهیر بلبل زړګی هم ورپتی کړې
چه فکرونه د سیا لری په سرکې
لویه خدایه ! په آمان دا ککری کړې
چې هم خان او هم عزت ساتي د نورو
هره پیغله مو "عینو" او "ملالی" کړې
په "سپیڅلی" زړه چې ټولی بدی پریږدو
داسی هیلی مو په زړو کې را ژوندی کړې

## د شهادت تاج

شهید عبدالواحد وحید

فدا اسلام نه چې نن سرده زما
مشه به غمګین ورځ د اختر ده زما
مینه مې ګوره اوس صفا د کنه
داغ د مرمې په سپین ټټر ده زما
دا سره جامه ګلګون په وینو مې چې
دا ستر ګواه ورځ په محشر ده زما
سوګند په رب ځان جنتی ګڼه
د شهادت تاج چې پر سر ده زما
دانګی سنګرته د (وحید) ملګرو
نور مو دښمن زیر او زبر ده زما
که خوځوی مې نن و دارته د رښا په ګناه
(وحیده) پل دی په پله د خپل رهبر ده زما

حامد "حلیم"




ځلانده لمر د خپلواکۍ مو پر آسمان راغلی
بیا مې لمنۍ ته دستورو یو کاروان راغلی
له تورو سترګو د خوښۍ او ښکه ګریوان ته لاړه
نن چې مې زیرې زړګي ته د جانان راغلی
توره د ظلم مې اوچته کړه په خپلو متو
بیا پر ظالم باندې د هجر یو طوفان راغلی
د یتیم اوښکې شولې پاکې د ښېو له څوکو
چې د محمود غونډې اتل مو پر افغان راغلی
ځیرې قمیص یعقوب ته زیرې د یوسف ورکړلو
چې دې ورک شوی زوی له څاه نه د کنعان راغلی
تال ګ تینګ کړي ملائیکو د منګلو پر سر
هغه سور اور پر ابراهیم باندې بوستان راغلی
بیا مې پر شونډو د خوښۍ یو موسکا خوره شوه
د حلیم کور باندې رحمت د پاک سبحان راغلی

دواخان "مینه پال"

## د هجران لاسونه

رانه چاپېر دي د هجران لاسونه
نه را رسېږي د جانان لاسونه
درنې درنې څپېړې راکړې پر مخ
څومره درانه دي د آسمان لاسونه ؟
اوس به مې څوك له دې دریابه باسي ؟
لنډ شو الله "ج" د جاله وان لاسونه
د څیریدو تاوان یې چا نه واخلم ؟
زما ګریوان کې و پریمان لاسونه
دغه یو کس خو راته ښه معلوم دی
راځي ورمات کړو په سندان لاسونه
هیڅکله لاس به "مینه پال" ورنکړي
د چا چې توري په دیګدان لاسونه

کاروان

پکې راتول مو دې ټنګي الماس د رڼا
موتړه تل وړي دي په دوا روستوګو پناس د رڼا
شپه څه بلا ده . د وصال مخه نیولی نه شي
ستوري و ستورې ته ورو غځوي لاس د رڼا
د ځیرې ځانګو کې به تورې بلبلکې اورو
په تورو غرونو کې به تل ګرځو په آس د رڼا
د شپې به څوك وي شپه پلوي دي یرغل ته تیار
سترګې ورو بریښوه واغونده لباس د رڼا
ستا د کاروان په مخ کې بیا د تبارو زور ولاړ دی
ساقي ترڅو کو پورې ډك راوړه ګیلاس د رڼا

غلام رسول راسخ

## غزل

د مینې میلمستیا ته په تکل وتلی یم
خطر نه ډکه لار ده په اجل وتلی یم
دلې دلې مې زړه کې امیدونه په غورځنګ دي
په تمه د دیدن یې په مزل وتلی یم
د کلي کور کوڅې مې غمازانو دي نیولې
له دوی نه پټ په پټه په څه چل وتلی یم
غمازان ګوره چې په هر ځای کې دیره دي
مزل مې کړو په ناسته لکه شل وتلی یم
مزل مې دا غزو پر څو کوکړی یم راغلی
هدف ته رسیدو ته پل په پل وتلی یم
کوم ځای کې چې تقسیم د دیدنونو پکې کیږي
راسخ له هغه کور اوله محل وتلی یم

احمدالله "وثیق"

## غزل

په لوړو سردرو کې چې خورې سندري بولی
شپیلۍ سره مې مینه ده شپونکی باندې مین یم
چې ډول د غزا ووهي او څي په تکبیرونو
د جنګ د تیز آسونو په دربې باندې مین یم
چې راشي له اسمانه او د کب په خوله کې پریوزي
په هغه لوړ قیمته سره غمې باندې مین یم
چې هر مازیګرې یې نجونې لمانځي په سندرو
ګودرمې د زړه سردی ، په منګی باندې مین یم
لري خوانې ګلرنګه ، چنارونه یې دنګه
د ګل په څیرې ښکلې یو سرې باندې مین یم
غمجن د بل په غم وي ، زړه یې ډك له پاکې مینې
په هسې سالم فکر او زړګي باندې مین یم

## غزل

عزت الله شمسزی

عشقه د ځریکو و دردو ته مې خوبونه راوړه
د زړه خاموشه پر هروته ملهمونه راوړه
معصومه هیله مې سپرلیه د سوال لاس غزوي
چې مې د رنګ کلي ګودر ته سره ګلونه راوړه
د قاف د غره ښاپیریۍ دا ځل د وږمو له ښاره
په وچکالی پسې وزرو کې بارانونه راوړه
خدایه پخپل نصرت شمله د هندوکش هسکه کړې
زما د دې عصر دښمن ته طوفانونه راوړه
وخته چې بیا هر مازدیګر شي سندریز سندریز
زړونو ته زور ښنګرو ته شور ښکلي وختونه راوړه
تاکې د مستي غرنۍ مینې نغمې نخیږي
خیاله شمس زي ته ښکلي ښکلي غزلونه راوړه

ملنګ جان شاهیوال کوهات

## زړه د خدای کور دی

زړه مې د خدای کور دي دغه کور ته ورانوی ځله
هسې په غضب باندې خپل ځان اخته کوي ځله
ځان ته غره مشی چه دا کور به دخدای وران کړمه
نه ئې شې ورانولې په حسد ځان سوزوی ځله
پتا چې ګر میده شوم خو دا زه د سزا وړ یمه
زړه مې بې ګناه دې بې ګناه ازار وې ځله
تا په خپل نظر کښې د قاهر جادو پټ کړی و
دا افسون خو ستا دی اوس په مائې راتپې ځله
ما خو درته وکتل خو څه مې درته راته وړل
ته په یو نظر باندې خپل زړه زمانه وړې ځله
یویسه زړه مې یویسه که په قدر ئې ساتلی شی
خونه چې قدرنه لرې عبث ئې زور وی ځله
زه ملنګ جان غوارم چې مظلوم زړه مې ازار نکړې
ډیرو ازار کړی اوس ئې ته ازار وی ځله



## لمر

ملاحبیب "غزنیوال"

ځرك وهم د غرو په څوکو لمر یمه
ورکي مې تیاری کړی روڼ سحر یمه
زه د وخت فرعون ته موسیٰ شومه
غرق به غلیمان کړم سمندر یمه
ما چه سور ښامار په ګونډو کړیدی
ښخ د استکبار په زړه خنجریمه
ناوې د ازادۍ مې دلته راوسته
زه هغه د رزم نغمه ګر یمه
ما چه مدرسې نه د جهاد په لوري ودانګل
زه د وخت بلال پاس په ممبر یمه
خو ځم له محرابه د سنګر په لور
ګرمه معرکه کې د لاور یمه
دښته د لیلې په وینو سره زما
زه تنکی ګلاب په زړه پرهر یمه
یو به خپاره شوی ولسونه کړم
زیرۍ د وحدت په لروبر یمه
سوله سره ډولۍ کې مې راوړی ده
زه د امنیت ښه بیانګر یمه
جوړ به خلافتِ عثمانی کړمه
زه روان په لاره د عمر یمه
لیکم غزنیوال چه پرې غزل ګوره
څوکې د قلم ته نیشکر یمه

## غزل

حضرت ولی "وصال"

خدایه څنګه نن رسوا شوه زما مینه
چه د خلکو د خندا شوه زما مینه
څو مره ډکه وه حیا او د ا لفت نه
نن خو لاړه بې میا شوه زما مینه
ما خو زړه کښې کوم غلط خیالونه نه وه
په څه وجه مې سازا شوه زما مینه
څه خطا او څه ګناه ده راته شوی
چه بدنامه په دنیا شوه زما مینه
زه وصال خو یم په ځان پوری حیران کړم
په دنیا کښې داسې مه دچا مینه

ملا صدیق الله "مثال"

## خیر ده

خیر ده که مال مو نشته پټ لرو او ننګ لرو
نور که مو هیڅ نه وی له ویاړونو ډک فرهنګ لرو
خیر ده د نورو که د سرو سپینو کمی نشته
مونږ چې ملغلری کړی تولید هغه نهنګ لرو
خیر ده غلیم که مو ودانی تولی ورانی کړی
مونږ چې یې بیا سر پکی کوټو هغه آونګ لرو
خیر ده که رقیب مو څو پوړیزی ودانی لری
مونږ که یو په غرونو کې د سپینو توروشرنګ لرو
و ویاړه "مشاله" په دا خپله خاوره و ویاړه
شکر په آسیا کې د افغان غوندی فالنګ لرو

## د ښو په څوکو

یم اوښکه سرګردانه د ښو په څوکو ځم
دیدن ته د اشنا مې د چړو په څوکو ځم
جانانه ستا د کلی دا موسم هم عجیبه دی
سپرلي کې پکی هم زه دا غزو په څوکو ځم
اشنا چې ته اور واخلی داسې هم درسره زه شم
لوړی شمه له درده د لمبو په څوکو ځم
ګریوانه ! چې سپتنه مې نکړي پریده چې څڅیږم
د یار له غمه تل دا ننګو په څوکو ځم
چې ستا د زړګی لویه غیږه شوه هم پرما تنګه
بیا پریږده لکه اوښکه د لیمو په څوکو ځم
ملاله چې خپلواکه تپې وایې میوند ستایې
داده د دښمن مخ ته د نیزو په څوکو ځم

محمد داود "همت"

## لوظونه

تول مینی اخیستی لیونی او ډیر بی تابه دي
څومره بوراګان چې راچاپیره له ګلابه دي
رابه شي دوره د امتحان موده رالنډه بیا
تا ته یې درکړي ډیر لوظونه له دې بابه دي
خود به دي همت غوندی اشنا له یاده وتي وي
ته ملامت نه یې عشقان دي بی حسابه دي

رحمت الله "دلسوز"

## اوښکی

په ګریوان کې چه مې اوښکی د غم توي شوی
لکه اوښکی چه پرګل دشبنم توي شوی
دی اوضاع راته پیدا کړه پر هارونه
توري خاورې چه پر سر د صنم توي شوی
بی ژړا اوله فریاده نور څه نسته
زموږ پرخاوری سرې پرزی چه دېم توي‌شوی
بلبلانو هجرت وکړ زموږ د ګلو
په ځوانۍ چه مو غوټۍ په ستم توي شوی
د خزان سپیره بادونه مو په خوا شول
دلاله غاټول نه اوښکی په نم توي شوی
روڼ سحر مو کډه وکړله له کوره
نا خوالۍ مود غویي په اووم توي شوی
زما "رحمت الله دلسوز" زړه خو کړم شو
چه مې وینی د زړګی په کړم توي شوی

میرزا محمد "شکیب"

## ابوم

د ګریوان بڼ مې تل په نم ابوم
پکی تنها د جانان غم ابوم
زړه کې هیڅکله نه سړیږی ګوره
رقیب د زړه په وینو سم ابوم
ساقی جامونه تل رقیب ته نیسی
په اوښکو اوښکو کلی چم ابوم
پام چې امونه پښه راوانه ړه وی
دا ستا په وینو به عالم ابوم
د لیلې دښته کې چه تږی پروت دی
شکیب ورځمه خپل صنم ابوم

عبدالاحمد محمدیار

# د اوسمهالو، پوهنیزو، تاریخی، ادبي او هنري ډګرونو نابغه مخکښ

## (لوی استاد پوهاند او علامه ارواښاد عبدالحی "حبیبی")

### لومړنی پښتو ادبي نثر لیکنه

ادبي ټوټې چې د بـهرنیو او لویدیـزو اثارو د ژباړې په دودیـدو سره زموږ ادبیاتو تـه لاپیدا کـوي ، د معـاصرو ادبیاتو د نامتو څېرولـه خوا یې زیاتی بیلګې پنځیږي .

لوی استاد هم په دې لړکې حینی لنډی ادبي ټوټې یا منثور شعرونه کښلي دي او پـه دې لاره کـې یـې لومړنـی او مقدماتي ګامونه پورته کړي او په خوږه ژبه یې ادبي او هنري نثرونه کښلي چې دا ( منثور شعر ) او ( ادبـي ټوټو ) پـه نومونو وخت پروخت به طلوع افغان او نورو جریدو کې خپاره شوی . دلته یې د ادبي نثر یوه نمونه ګورو .

مچه :

" سومې کوز شو . شونډو مـې یـوه ښکلي رنګینه طلایي پانه مچ کړه او خلګو وویل

دا قرآن دي .

زما پـه زړه کـې د دې مچې سـره یـو تقدیس آلوده دارادت لیوني جذبـه وه بله ورځ مې د مور لاسونه په احترام مـچ کړه او دې مچوهم زه پر تندي مچ کړم . خـو د دې پـه منـځ کـې د مځکــی او اسـمان فـرق و . مـا د مـور لاسـونه پـه درناوی او مینی مچ کړه ، خو دې زما تندی په مهرباني او شفقت مچ کی . بلـه پلا زمـا کـوچنـي زوی پـه خنـدا او ښکلا راغی . ما په غیږ کې ونیوی او پرسرو . سروباړ خو ګانو مې په داسې محبت مچ کی ، چې د دې مچې خوند بیل و .

ګوره ! دغه یوه شونډه په یوه مچه کې څوني ډول ډول خوندونـه او مقصدونـه لري . خو ! هغه خوند . هغه مزه . هغه مینه او هغه جذبه چې یو ځلمی یې د پیغلي پـه سرو شونډو کې مومې . دا خوځانله بیله خورا خوږه دنیا ده .

پـه دې مچـه کـې د عشق اور بلیـږي . دلته مینه او الفت . احترام او تقدیس ټوله سره ګډیږي . دا مچه د انسانیت د خوندونو یوه غوټه ده

دا مچه د انسـانیت د بقـا او دوام یـوه مقدمه ده

دا مچـه یـوه معنـا لـري . ډیر خوندونـه لري او د دې ټولو نتیجه څه ده !

د انساني توکم دوام !

... او همدارنګه د هغه په قلم دغه ډول ادبـي نثرونـه د تېرولـو ادبیـاتو څخـه راژباړل شوي او خپاره شوي دي (۱۹)

**د لومړنیو داستاني اثارو لیکنه :**

په اوسـنی وخـت کـې چـې سـائنس او تکنـالوژی د انسـان مـادی اړخ یــو څه غنی کړی او تکمیـل کـړی دی . مـګر معنوی اړخ یې چې د هنر او ادب وظیفه ده لانیمګړی دی . همدا وجه ده چې ژوند او وخت . لیکوال او هنرمن ته ږغ کوي چې د انسان دا معنوی اړخ هم بډای او بشپړ کړي ... چې د انسان ټولې خوا وې پوره شي . کیسه چې د ادب یو ښاخ دی چټکو ګامو ته اړتیا لري . موږ دومره پوهیږو چې د انسان ټولنی له تشکیل سره یو ځای ادب منځ ته راغلی دی او کیسه د ادب یوه غوره بیلګه ده . کیسـه د لومړنیو ټولنو څخه پیـل او تـر نـن پـوری پـه بېلـو جولـو رارسیدلې ده

کیسه د پند . عـبرت او تبلیـغ لـه مخی دادب ګټوره برخه جوړوي او پـه ټولنـه کې یې خدمت ګړنـدی دي . ځکـه نـو ادب پوهانو د ټولنی له پاره د کیسـې لیکوال ته اړتیا ننګیرلې ( حس ) کـړې ده ( ۲ )

تـو لـوی اسـتاد هـم دغـه د وخـت دغوښتنی ږغ اوریدلی او د ژوند دغـه اړتیـا یې ننګیرلې ده . البته د پښتو د اوسمهالـه داسـتان لیکنی په تـاریخی سیر کې دلوی استاد نوم موږ ته بوازې پـه دې تکـی کـې جـوت نـه دي چـې ګونـدې هغـه هم کیسـی لیکلـی دي بلکـې پــه افغانســتان کــې هغــه داوسمهاله کیسه لیکنی مخکښی دی او دلومړی ځل لـه پـاره یـې اوسـمهاله

هنري کيسې په ( طلوع افغان ) کې
خپرې کړې دي . (۲۱) د زريني
ځانګې ليکوال هم ليکي چې " ... د
پښتو نځوا په دې برخه کې د نورو
ډيرو نوښتونو تر څنګ د لنډې کيسې
پيل هم لوی استاد پوهاند عبدالحی
حبيبي کړی له نن څخه يې پنځه
څلويښت ( اوس دوه شپيته ) کاله
وړاندې لنډې کيسې کښلې او د طلوع
افغان په ګڼو کې يې خپرې کړې دي .
...... ( ۲۲ )

ښاغلی محمد زرين انځور وايي :
" د ( طلوع افغان ) د څوارلسم خپرنې
کال په لومړي ګڼو کې د ( توريالی
پښتنه ) په نوم د استاد حبيبي يوه
حماسي کيسه خپره شوې ده چې موږ
يې په افغانستان کې يوه بشپړه
لومړنۍ نمونه بولو . ( ۲۳ ) .

**د لومړنيو ډرامايي آثارو ليکنه :**

ډرامه هم د ادبياتو يو ډير ارزښمن ژانر
( ټولګی ) دی چې په نړۍ کې اوږد
تاريخ لري خو په افغانستان کې نه .
البته په سيستماتيک او هنري ډول
ډراماتيک هنر لکه پيښې . پيرې .
ښودنې . ننداړې او تمثيلي حرکات د
بشر له لرغوني او لومړني ژوند سره
تړلي دي بشر چې د هستۍ پر ډګر
پاندې پښه کښيښوده .

ډرامه هم وزيږيده . او پخپله د انسان
زيږيدل هم يوه ډرامه ده او يا ويلای
شو چې د انسان ظهور هم په ډراماتيک
شکل شوی دی . ځکه زموږ په رواياتو
کښې د بابا آدم او بی بی هوا کيسه .
جنت . د غنمو دانه . د شيطان لمسون
. له جنت نه بيلتون او بيا د خاورو
غونډې دنيا ته راتګ دا هر څه
ډرامايي ډول لري . دا او داسې نورې
اساطيري پيښې د ډرامې په جلال کې
ډوبې دي . او ننداره او پيښې د تقليد
لومړنی هنر دی چې انسان دخپل ژوند
. نمانځنو . ټولنيزو او فکري خوښيو
په ترڅ کې پيژندلی دي . ( ۲۴ )

په افغانستان کې لومړنۍ ډرامه هماغه
د لوی استاد ليکل شوې " توريالی
پښتنه " ده چې د دې ذکر مخکښې هم
نوموړی اروابناد دی "

څرنګه چې زموږ د ادبياتو په لومړنيو
د استاني اثاروکې د ډرامه ليکنې
ځانګړتيا وې هم ليدل کيږي . نو ځينو
ليکوالو دغه اثر " توريالی پښتنه " په (
نمايشي ) اثارو کې حساب کړی دی .
په " اوسني ليکوال " کښې هم د دې
اثر د چاپ په پيل کښې کښل شوي دي
چې " دا يوه ډرامه غونډې ده چې د
افغانستان د خپلواکۍ د جګړې يوه
وړه صحنه تشکيلوي " ... موږ په دغه
داستاني اثر کښې دداستان او ډرامې
ځينې ګډې ځانګړتياوې ليدلی شو ...
( ۲۵ )

**د پښتو لومړنی ( ۲۵۰۰ ) کالنی لرغونی ميخي ډبر ليک :**

ښاغلی استاد محمد پرويش شاهين
ليکي :
" دا يوه بيشکه او منل شوې خبره ده
چې پښتون ولس د نړۍ په زړو او
لرغونو ولسونو کې دی او نه يوازې دا
چې د ده څه نا څه تاريخ او جغرافيه په
اويستا او ريګويدا غونډې لرغونو او
بنسټيزو څرګندو کتابونو کښې ځای
مومي . بلکې د تاريخ د پلار " هيرو
ډيتس " اولاد هيروډيتس نه هم پنځه
سوه کاله پخوا د " هيدکاتس " په
يادونو کې يادونه لري او دې ټولو
د ده خاوره تاريخ او جغرافيه په رنګ .
رنګ . ډول ياده کړې ده . اولاد خوند
او رنګ خبره داهم ده چې د تاريخ په
اوږدو کې د اقام هم پر دغه پلرنۍ او
نيکمرغه خاوره کُميښت پاتې شوی دی
پر کومه چې نن هم د ده خپلواکی .
توان او قدرت غزونې کوي

دا هم جوته ده چې د پخوانيو ارياېانو
دور څورا هيسته چې کومې درې ثابتې
ژبې پاته دي
په هغو کې يوه بنسټيزه ژبه ددې
ميړنی ولس نجيبه پښتو ده

ښاغلی استاد شاهين وروسته ليکي :
" ... په نړۍ کې تر ټولو غټ او زاړه
صرف درې ښارونه وو . چې " يو
جريکو " بل " جريد " او بل د پښتنو "
منديګاک " و ... درې واړه ځايونه د
ودانيز هنر مرکزونه وو او ډير لوړ
تهذيب او تمدن يې درلود

ښکاره ده چې دومره زوړ . پخوانی .
لوی او يوه . علمي او تهذيبي ښار به
څومره ارزښتناک علوم او فنون لرل او
دغه علوم او فنون د ژبې . ليکدود .
ليک . لوست او له علمي فرهنګ او
تعليمي لوړتيا نه پرته نه شو ترلاسه
کيدای

خبره مو د ليکلي پښتو کوله . د ويلو
په لړ کې خو پښتو زړه ژبه خپل او
پردې يوشان کټي او مني يې ... خو
ثبوت ليکلي پښتو غواړي . "

بيا زياتوي :
" په نړۍ کې وړومبی ليک په ميخي
ليکدود کې شوی او د عراق له
کندوالو څخه يې په زرګونو بيلګې
ترلاسه شوي دي . . .
... تر دې چې دغه ( ميخي ) ليک د
داراګانو په ورځو کې په ايران کې د
عام ليک لوست له پاره کارولی شو چې

ئن هم د هغو ورځو یاد پاتې دي . ډیر لیکونه لکه د بیستون او نقش رستم ډبر لیکونه او داسې ډیر نور شته چې د دغه لیك تاریخ ژوندی ساتي .

په دې میخي لیك چې هر څومره لیکونه شوي دي او هر چا کړي دي خو د پښتنو په لوی کاله کې دا ویاړ او افتخار لوی عالم . لوی استاد ، پر خپله ژبه او خپل تاریخ او خپله خاوره له ځان نه هم زیات مین او مهربان چې . قادر خدای " ج " ورته له دې نه ماتېدونکی همت او نه کمیدونکی مینې سره سره دعلم یو لوی سمندر ورکړی و چې په تاریخ او ادب کې یې ډول ډول په یوه سر دومره څه لیکلي دي چې باور نه کوم . بل پښتون به یې دومره او داسې وکړای شي . دغه لوی عالم اروانباد علامه عبدالحی " حبیبي " په دغه میخي لیك کې د دا راپه ډیر لیکونو کې د پښتو یو څو جملې مالومې کړې دي او لیکلي پښتو یې د دارا ورځو ته رسولې وه . که څه د دوی له دې فخر او افتخار ډك زیار او کامیابي باندې له ډیرو ځاونو ځخه نیوکې وکړای شوې او دلوی استاد دغه کار ته جعلي او غلط کار وویل شو . خو د استاد ویښا دومره باوري . زیاریې دومره پوخ او څیړنه یې دومره ژوره وه چې د دغه مخالفت له پاسه د هغوی کار په خپل ځای دساتنې وړ او جوکه پاتې شو " ( ۲۶ )

دغه میخي لیك چې یوه اخلاقي حماسه ده د لوی داریوش د ایران د هخامنشي کورنۍ د مشهور پاچا په امر چې ( ۵۲۲- ۴۸۶ ق-م ) پورې یې سلطنت کړی د بغستان ( بستون ) پرغره لیکل شوی دی .

دغه لیك یو دري مسریز او شپږ څپه ییز شعر دی چې د تهران د پوهنتون استاد دوکتور معین په ډیر وچ زور پارسي بللی . خو لوی د استاد رو مخې او تیزې سترګې تر وتلې . روڼ او سپین پښتو شعر یې د خپل علمي څواك په مټ ورڅخه را ایستلی دی . د شعر تلفظ او سپیناوی داسې دی

1- Ne a ri ka a hum
2- Ne drau ja na a hum
3- Ne zura Na ra a hum

دا دري مسري داسې لوستل کیږي :

۱- نې اري که اهم

۲- نې دروجه نه اهم

۳- نې زوره که ره اهم

اوس به دغو درو مسریو ته ځیر شو او بیلې . بیلې هیڅاوې به یې سره وسپلوو . وګورئ دا خو پښتو دی چې داسې ویل کیږي

۱ نې اریکه اوم

۲ نې دروجنه اوم

۳ نې ځور کره اوم

مانا دا چې پاچا وایې چې : نه د چا اریکې یا خندې شوی یم . نه مې څوك دروهلی یا تیرا یستلی دي او نه مې پر چا زور کړی دی . ( ۲۷ )

د تفصیل له پاره د اروانباد د لوی استاد ( پښتو ادبیاتو تاریخ ، دوهم ټوکه کتلی شی

خو هغه بې بنسټه خبرې چې . د ځینو کینه ګرو او ناپوهانو له خوا څخه د دغه میخي لیك پر پښتووالي کیدلې . د غلط یا جعلي تاپه یې پر وهله . اوس کیدای شي له خجالته سترګې پورته نه کړي . ځکه چې په دې وروستیو کې ډیرې نورې میخي جملې او بیا یو لوی کتاب وڅیړل شو او سپینه پښتو ورڅخه راووته .

ښاغلی استاد شاهین وایې :

" څه مهال مخکې زما لاس ته یو کتاب راغی چې په هغه کې پر میخي لیك ډیر بحث شوی و او بیا پکښې دمیخي لیك د ژبې سره یو ځای څه بیلګې ورکړای شوي وې . کله چې ما دغه بیلګې ولوستې نو څه نوره پښتو پکښې رابانده پیښه شوه او ځان مې دې ته جوړ کړ چې یو مضمون پرې یوې خپرونې ته " له حبیبي صاحب نه وروسته په میخي لیکونو کې نوره پښتو " تر سرلیك لاندې ولیکم " ( ۲۸ )

دا څیړنه خو څه خپره شوه . دالړې لاروانه وه چې دغه خپرونه چې . د استاد شاهین څیړنه یې خپرولو بنده شوه او دا لړۍ نیمګړې شوه

وروسته محترم ډاکتر ګل جنان ظریف یو ډیر غوره . ښه او باوري کتاب " د پښتو میخمري ډیپونه " له پیښور څخه چاپ کړ .

ښاغلی شاهین خوښي څرګندوي : " په رښتیا چې یو ډیر پیاوړی او په زړه پورې کار یې کړی دی . ځکه چې دا یو ډیر ګران ډیر چینجن او ډیر ستړی کار دی . ډیر وخت او ډیره پوهه غواړي ... د ډاکتر حسیب د دې لیك یوه غټه ګټه او سپیناوی دا هم وشو چې کومو شکمنو خلګو د خدای بخښلي لوی عالم ښاغلي استاد عبدالحی حبیبي د میخي لیك په پښتو بې ځایه شك کاوه . نو هغه خو فقط دري جملې او کړښې وې او ګران محقق ګل جنان ظریف خو ورته پوره پند کتاب مخې ته کښیښود " ( ۲۹ )

## د پښتو ادبیاتو لومړنی لیکل شوی تاریخ

وایي چې ژوندي قام ژوندی تاریخ لري . هر هیواد . هر قام او هره ژبه چې وغواړي چې خپل برم . عظمت . هویت . ماهیت . اصلیت او ځواک نورو ته وښیي او ځان ته په سیمه ییزه او نړیواله کچه اعتبار لاسته راوړي . نو هڅه کوي چې خپل د تاریخ تیری هیری پاڼې واړوي . ویې شني . ویې څیړي . کره یې کړي او د یوه پاخه لاسوند ( سند ) په توګه یې د ننداړې ډګر ته راوباسي . په دې توګه له یوې خوا . خپل لرغوني شتون جوت او دهغه له مخې خپل اعتبار پوخ کړي او له بل پلوه خپل اوسني ژوند د تیرو تجربو له مخې سم . منظم اوعیار کړي دلته خبره د پښتو ادبیاتو تاریخ لیکنې په اړه ده . د پښتو د ادبیاد لومړنی تاریخ هم لوی استاد لیکلی دی . نه یوازې دا چې د پښتو ادبیاتو د تاریخ لیکنې بنسټ یې ایښی دی . بلکې د یوالو نه یې هم ښه پاخه ورته درولی . چت یې ورته جوړ کړی او په دې ډول سره یې د پښتو ادبیاتو د تاریخ یوه ښکلې او نازنینه ماڼۍ اباده کړې ده دلته به د فاضل استاد پوهاند عبدالشکور رشاد دهغې مقالې لنډیز راوړم چې په دې اړه یې لیکلې او د ( استاد یاد) کې چاپ ده :

د یوې ژبې ادب د هغې ژبې په ټول عمر کې یو راز نه دی . لکه د ثقافت او مدنیت نور اړخونه چې لوړ او ځوړ لري . ادب هم د تکامل پړاوونه وهي . وده کوي . خوانیږي . زړیږي او نوې – نوې رنګونه مومي . دغه رنګونه یې د دورو په نامه یادیږي او د ادب ټولې دورې یو شان نه دي . ادب په هره دوره کې ځانګړې خاصې لري . غرضونه یې توپیر مومي او په هنري ابعادو کې یې تفاوتونه راځي . د یوې ژبې او ادب د دغو تکاملي بدلونونو منظمه او مسلسله پلټنه دهغې ژبې د ادبیاتو تاریخ دی . زموږ په پښتو ژبه کې د ادبیاتو د تاریخ لیکنه تر ټولو لومړی اروابناد استاد علامه عبدالحی حبیبی پیل کړې ده په ۱۳۱۲ هـ ش کال چې دی په کندهار کې د طلوع افغان د جریدې مدیر و . په هغه جریده کې یې د پښتو ژبې د شاعرانو پیژندګلوی ته دوه ستونه خاص کړل ، د پښتو د یوه پردیس شاعر تر عنوان لاندې یې یوازې د عبدالرحیم هوتك د ژوند نه پیښې . د اشعارو نمونې او د پردیسی مصیبتونه په یو ولسو ګڼو کې خپاره کړل د کاظم خان شیدا د اشعارو منتخبات او ژوندانه پیښې یې په پنځو ګڼو کې خپرې کړلې . د ملا فرح الدین . حبیب الله اخندزاده کاکړ . خدایرحیم اکاخیل . عبدلودود سرباني او نورو د ژوند حالات او د شعرونو نمونې یې له هیرولوژغورلې ..

لوی استاد حبیبی د تحقیق دغه لړۍ پسې اوږده کړله په ۱۳۱۲ هـ ش کال یې د کندهار د ( پښتو ) مجلې په دریو ګڼو کې یوه رساله خپره شوه چې عنوان یې ( د پښتو او پښتنو تاریخ ته یوه کتنه ) .

په ۱۳۱۴ کال لوی استاد دغه مقالې د کتاب په ډول سره راټولې کړلې د ( شعرای معاصر ) یوفصل یې پر زیات کړ او دغه پېرې د ( دوره تجدد ادبی پشتو ) په نامه ونومه . مقدمه او خاتمه یې وروکښله . د سپړ شپیتو ماخذونو فهرست یې ورسره مل کړ ...

لوی استاد چې د ۱۳۲۳ کال د سرطان په میاشت په کابل پوهنتون کې د ادبیاتو د پوهنځي تاداو کیښود . په لومړي ټولګي کې یې د پښتو ادبیاتو درس پر خپله غاړه واخیست . له دغو درسي نوټونو څخه د پښتو ادبیاتو د تاریخ لومړی ټوك جوړ سو او د ادبیاتو پوهنځي په ۱۳۲۵ ش کال د کابل په عمومي مطبعه کې چاپ کړ . ...

دغه په ۱۳۵۴ هـ ش کال د ادبیاتو پوهنځي له خوا بیا چاپ سوی دی . په دې چاپ کې اروابناد مولف ډیر زیاتوب راوستلی دی ... د مخونو شمیر یې ۲۷۰ ته رسیدلی دی ... د پښتو ادبیاتو د تاریخ دوهم ټوك لوی علامه حبیبی په ۱۳۲۴ هـ ش کال کښلی دی ... په دې ټوك کې اروابناد مولف د پښتو ادب تاریخ تر زرو هـ ق. کالونو پورې څیړلی دی . .. دغه ټوك یو ځل په ۱۳۳۸ هـ ش کال بیا په ۱۳۴۲ هـ ش کال د پښتو ټولنې له خوا چاپ سو ... په دوهم چاپ کې یې د مخونو شمیر ۳۶۸ ته جګ سوی دی ...

اروابناد لوی استاد علامه حبیبی د ۱۳۴۵ ش په شاوخوا کې بیا د کابل پوهنتون د ادبیا په پوهنځي کې د پښتو ادبیاتو د تاریخ استادو . د ده د څلورم ټولګي درسي نوټونه په ۱۳۴۷ ش کال د ادبیاتو د پوهنځي له خوا په کتابي شکل چاپ سول او دپښتو ادب لنډ تاریخ یې ونومه ... چې زموږ تر زماني پورې یې په خورا جمال د پښتو ادب تاریخ څیړلی دی. اروابناد لوی استاد د پښتو ادبیاتو د تاریخ دریم او

ځلورم توکونه په هغه تفصیل چې ده غوښته و نه لیکلای سوه د دغه مهم تکل او تحقیق بشپړانیه د ده ارمان و خو دا ارمان هم لکه نور نیمګړی پاته سو . ( ۳۰ )

په دې توکه سره مونږ وینو چې هغه لویه ودانۍ چې لوی استاد د پښتو ادب له پاره دروله وه تر اوسه هم پر هماغه بنسټ محکمه ولاړه ده او تر ده وروسته یې چا هغو مره چې ښایې دلـه ساحه پراخه نه کړه او دالومړنی ویاړ تر اوسه هم د لوی استاد پر تلپاتې نامه پاته او ځلاند دی .

**د لومړی ځل له پاره د زړو متونو . تحقیق . تهیه او چاپ :**

د زړو متونو لاسته راوړل بیا د هغه څېړنه . مقابله او برابرونه یو خورا سخت کار دی . بیا په داسې حال کې چې دا کارتر اوسه نه وی شوی او نه یې تجربه په لاس کې وي . خو دا کار د لومړی ځل له پاره په پښتنی او افغانی نړۍ کې د لوی استاد له خوا په خورا بشپړه توګه د اوسمهال دپوهنیزو آرونو ( اصولو ) سره سم او کره ډول تر سره شو او د افغاني څېړونکو پرمخ یې دغه ترلې وړ په خورا حکمت سره پرانیست نه یوازې دا چې دغه بند وریې پرانیست بلکې خپل ډیر زده کوونکي یې تر لاسو ونیول او ددغه ډول څېړنې و ګلبن ته یې ننه ایستل . هلته یې وکرخول . له هر ډول ګل . بوټي او څوز سره یې اشنا کړل . دا ویاړ یې هم نه یوازې دا چې د لومړی ځل له پاره په پښتو کې خپل کړ بلکې په دري ژبه کې هم د دې درانه کارنو ښتګر لوی استاد و . دلته به د ښاغلی استاد زلمی هیواد مل د مقالی لنډیز چې په دې اړه یې لیکلی راوړم : لوی استاد مرحوم علامه حبیبی چې په متن څېړنه پیل وکړ نو یې د متونو د نشر زاړه روسونه پریښودل او د معاصری متن څېړنې له دودونو سره سم یې دغه کار ته توجه وکړه

لوی استاد د پښتو متونو د څېړلو او چاپ ته د برابرولو په لړ کې لومړی ځل د پښتو د لوی او عظیم شاعر خوشحال خان ختك د کلیات د انتقادی او تحقیقی متن برابرولو ته مخه وکړه . استاد د کلیات دغه متن د ځلورو خطی اویوې چاپ نسخې له مخې تهیه کړ .... توضح طلب موارد یې په حاشیو کې شرحه کړل . په پیل کې یې په مقدماتی ډول د متن په ترتیب کې د خپل کار پر سیستم خبری وکړی او ۷۲ مخیزه علمی مقدمه یې پر وکښله په پای کې یې ۲۸ مخه د کلیات نادره لغات اومهږ دفه راوړل او داکار یې د یوه کال په ترڅ کې تر سره کړ د " خوشحال مرغلری " په نامه د کندهار د طلوع افغان اداري له خوا په ۱۳۱۷ هـ ش کال کی چاپ شوه .

وروسی یې د عبدلقادر ختك دیوان د دروو خطی نسخو له مخې د ۳۷ مخیزه علمی مقدمې . په پای کې د ۶ مخه نادره مردفو لغاتو سره د ۲۲۸ مخونو په شمیر تهیه او په ۱۳۱۷ هـ ش کال کې یې د طلوع افغان اداري له خوا خپور کړ

بیا یې د لوی احمدشا بابا دیوان د دریو خطی نسخو له مخې د ۱۶۲ مخیزی علمی او جامع مقدمې او ضروری یادونو سره د ۴۰۴ مخونو په شمیر تهیه او په ۱۳۱۹ هـ ش کال کې په کابل کې د پښتو ټولنې له خوا د احمد شابابا د دیوان په نوم خپور شو . دغه دیوان چې مخکی نه و چاپ شوی . یو لوی افتخار و چې د لوی استاد په برخه شو . د دغسې بریو او افتخاراتو په لړ کې لوی استاد د پټې خزانې د قدیم اثر په چاپولو ابدي افتخار وګاټه

لوی استاد د پټې خزانې متن په کوټه کې د علامه عبدالعلی څخه ترلاسه کړ .په کابل کې یې حواشی . تعلیقات او سریزه پروکښله او همدارنګه یې د دغه کتاب د نثر او نظم په باب دوې هر اړخیزی مقالې وکښلی . د کتاب متن یې په پارسی ترجمه کړ . چې د دوی له ترجمې . څرګندونو . لمن نښلونو . نومسلیکونو او ګنو اضافو سره دغه مهم متن لومړی ځل د ۳۸۵ مخونو په شمیر په ۱۳۲۳ هـ ش کال کې د پښتو ټولنې له خوا خپور شو .

څرنګه چې د پټې خزانې هماغه یوازنۍ مخطوطه په لاس کې وه نو ځکه دغه متن د یوې متاخری نسخې له مخې تهیه شوی دي .

متن پوهان د یوې متاخری نسخې له مخې د یوه زاړه متن په تصحیح او تدوین کې د متن پوه او مصحیح ستونزو ته ډیر متوجه وی ځکه دغه کار څه اسانه خبره نه ده مګر زموږ لوی استاد د متن پوهنې له ټولو اساساتو سره سم د دغه متن له تصحیح . تدوین او ترتیب څخه په بریالیتوب سره وتلی دی

پټه خزانه د لوی استاد د چاپونو له مخې په روسی . انګریزی او المانی ژبو هم بشپړه ترجمه شوې ده

دغه ډول لوی استاد د لوی خان خوشحال خان ختك د سواتنا مې متن

هم په تحقیقي ډول چاپ ته اماده کړی دي . یل ډېر مهم متن د سلیمان ماکو تذکره الاولیا دی چې لوی استاد د خپلی څېړنی او سریزی سره ترتیب او چاپ کړی دی .

هسی چې لوی استاد پښتو متون په تحقیقي ډول چاپ ته اماده کړی دی . دغه راز د دوی په زیار د ډېرو کار امدو او نایابو پارسی متونو لکه طبقات ناصری . طبقات الصوفیه . صدمیدان . نوای معارك . سر رشته طریقه خواجگان . زین الاخبار . السواد الاعظم . و فضایل بلخ . شرح بیتین مثنوی و حدیقه الحقیقه . روضه الفریقین او مختصر وافی بقواعد علم قوافی . تحقیقی او انتقادی بڼی له مفصلو شر حواو حواشیو سره چاپ ته اماده او چاپ شوی دي . استاد په دې برخه کې هم تر هر چا زیات حقدار او د درناوی او قدر وړ دی .

... که چیری موږ د خپل مرحوم استاد متن د ترتیب . تدوین او تصحیح کارونه تر څېړنې لاندې ونیسو . د دوی تول دغه ډول کارونه د متن پوهنی او متن څېړنې له معاصرو روښونو سره برابر دي او د دوی دغه ډول کارونه او د متونو په ترتیب کې د دوی روش او د حشیې . تعلیق او مقدمو په کښلو د تحقیق ډول موږ ته د روڼ مشال حیثیت لري موږ او راتلونکی کولای شو د استاد د کارونو پر اساس کلونه . کلونه د متن پوهنی او متن څېړنې کارونو ته دوام ورکړو . ( ۳۱ ) پر دې سربیره لوی استاد د کران افغانستان په تاریخ او جغرافیه لیکنه کې هم زښت د قدر وړ او په کمی او کیفی لحاظ بې ساری کار کړی دی .

له دې لنډو یادونو څخه دې پایلی ته رسیږو چې زموږ د دغه ستر انسان زموږ د ښکلي افغانستان هغه عظیمه هستی وه چې له فیض او برکت څخه یې د دې خاورې یو وګړی هم بې برخې نه و او نه په وی . ځکه چې هیڅ داسی کوم یو فرهنګی او علمی ډګر نشته چې لوی استاد دې یې د مخکښی ویاړ پروړ لري او په هره علمی ساحه کې د تبحر تر بریده رسیدلی و .

په پای کې نه پوهیږم چې په ډېر افسوس سره ووایم او که په سره سینه چې په کابل کې می د ډیر ولوستو او پوهو کسانو سربیره د کابل پوهنتون د ادبیاتو د پوهنځي . هغه چې لوی استاد یې بنسټ ایښودونکی و . له استادانو څخه د اروابناد لوی استاد د مزار پوښتنې وکړې باور وکړی چې ځینو ته بیخی دا خرکنده نه وه چې چیری دی او ځینو لا دا ویل درلود او دا پته ورته وه چې په شهدای صالحینو کې دی او نور یې د قبر د موقعیت درك ورسره نه و .

هغه خبره مې اوریدلې وه چې ( خدایه ژوند په بل قدم کې راکړی خو مرګ په پښتنو کې ، دا ځکه چې پښتانه په ژوند کې د خپلو هستیو قدر نه کوي خو پر نیستنی یې زیاتی اوښکی تویوي خو زه چې له پوزتنی پیښی سره مخ سوم نو د نوموړی متل پروړوستۍ برخه ( مرګ په پښتنو کې ) هم راته شك پیدا شو لوی استاد د ۱۳۶۳ لمریز کال د غوایي د میاشتی پر شلمه له دې وراني نړۍ څخه دا فاني ژوندانه پر ثور نوموړی قدم کښښود

اروایې ښاده او په برکت یې زموږ اوسنی ځوان کول ( نسل ) برکتمن

**اخځونه :**


۱ طلوع افغان - ۱۳۷۵ هـ ل

۲ زرین انځور - دافغانستان د ژورنالیزم مخکښان

۳ پوهندوی بشیر دودیال - کندهار مجله - ۲ ګڼه - ۱۳۷۸ هـ ل

۴ زلمی هیوادمل - فرهنګ زبان و ادبیات پښتو - دوهم توك

۵ عرفان مجله - ۱۲ ګڼه - ۱۳۶۲ کال - کب

۶ عبدالروف بینوا - شمس الدین کاکړ د دیوان سریزه .

۷ حبیب الله رفیع - ژبپالنه - لومړی توك .

۸ د لمر شغلو ته - د کمال الدین مستان شعرېغوند - سریزه .

۹ زرین انځور - شعرونه او نقدونه .

۱۰ زرین انځور - د استاد یاد .

۱۱ څېړونکی معتمد شینواری - سریزه - لیونی - د زړه سواند کیسه غوند

۱۲ حبیب الله رفیع - د دراني پیدایښت او پایښت - ګندهارا مجله پنځمه ګڼه ۱۳۷۷ .

۱۳ استاد محمد پروش شاهین - ( پښتو ۲۵۰۰ کاله لرغونی پخی ډېر لیکونه ) ګندهارا مجله - پنځمه ګڼه ۱۳۷۷ کال

۱۴ پوهاند عبدالحی حبیبی - د پښتو ادبیاتو تاریخ - دوهم توك .

۱۵ پوهاند رشاد - ( علامه حبیبی د پښتو ادبیاتو د تاریخ لیکلو ته داوښرونکی ) داستاد یاد .

# جادو ګره لګره

وثیق مسافر
ژباړه

په یوه کلی کې یو کوچنی هلك هستوګنه کوله . تل به یې پوښتل او غوښتل یې چه په ټولو شیانو وپوهیږی . د ځمکی پرسر یا په هوا کې به یې که کوم شی ولیدی د هغه په هکله به یې پوښتنی کولې. چې چا پیدا کړی دی ؟ او چیرته ځی ؟
هره ورځ به یې له خپل نیکه څخه ډیرې ډیرې پوښتنی کولی ان تر دی چه هغه به یې کله بی حوصلې کاوٌ هم . خو د هغه پروایې نه ساتله د خپلو پوښتنو ځوابونه یې غوښتل .
یوه ورځ یې له خپل نیکه نه وپوښتل
بابا جانه ! د ونو ښاخونه ولی ښوری ؟
نیکه یې ځواب ورکړ : ونې باد ښوروی .
هلك : باد څوك ښوروی ؟
نیکه : زه نه پوهیږم یوازی د باد برغ اورم . خو باد می تر اوسه پوری په سترګو نه دی لیدلی ، کله می چه هغه ولید هرومرو بی پوښتم .
هلك : ښه دا راته ووایه کله چی ماښام شی دا ستوری څوك لګوی ؟
نیکه : زه څه پوهیږم زوی جانه ! ما کله په هوا کې د اسمان پر لوری الوتل نه دی کړی ، دا له بازانو ...... وپوښته چه په هوا کې ګرځی او له هغو مرغانو ، چی تر وریځو لا هم لوړ ګرځی .
بابا جانه نن سهار می ډیر (سپین مرغان ) ولیدل چه سره راټول شول ، او یو ځای یې په کوم نامعلوم لوری الوتل کول ، رښتیا هغوی چیرته تلل ؟
په دې هر کوچنی پوهیږی ... تودو ځایونو ته ځی چیرته چی واوره نه وی .
بابا جانه ! دا رښتیا دی چی ( ډینګان ) کولای شی خپل ځانونه په انسانانو واړوی ؟
نیکه : زه نه پوهیږم ، خو له نورو می اوریدلی دی وایې چی : د لوړو ونو د ځنګله سره نیژدی یو سیند دی د سیند شاته یوه پراخه دښته ده د ځنګله په مینځ کې یو کوچنی دریاب دی . هلته ( ډینګان ) لامبو وهی . حیرانونکی دا ده چه ( ډینګان ) په اوبو کې غوټه شی او په انسان اوړی .
کوچنی هلك وپوښتل : بیا هغه څه کیږی ؟ ( ډینګان ) چه په انسان واوړی بیا چیرته ځی ؟
نیکه : ورسته خپلو کورو ته ځی .
هلك وویل : زه باید هرومرو پوه شم چه چیرته ځی او کورونه یې چیرته دی
هلك یوه ورځ تر نورو وختی له خوبه پاڅید او په یو آسپه یې پښه واړوله اسپه یې په غمجنه وهله او چیغه یې کړ : هو !
دا چه یې وویل نو یې د لوړو ونو پر لور مخه کړه . د هغه آسپه لکه الوتکه په هوا کې لوړه ولاړه کله چه له لری د لوړو ونو سرونه ښکاره شول . هلك د خپلی اسپې ته وویل
کله چه زه خپل تاکلی ځای ته ورسیدم تا ته به ډیری اوربشی درکړم چه مړه شی .
اسپی چه د هلك دغه نوری واوریدل خواك . او قوت یې پیدا کړ او ډیر تیز یې د اسمان پر لوری الوتل وکړل
د هلك یو ناڅاپه کښته خپل نیکه په ذهن کې راغی او ټکان یې وخوړ . څه وخت وروسته د لوړو ونو سرته ورسید د ماښام وخت هم په رانیژدی کیدوو هلك ګړی په ګړی

کښته کتل تر څو یو څه وچه ځمکه وویني او کښته شي .

خو اوبو هیڅ پای نه درلود . ټول ځایونه اوبه او سیندونه وو . کبان به د اوبو پرسر ښکاره کیدل او بیرته به په اوبو کې دننه کیدل هلك یو ځل له لیري نه یو ډبرین ساحل ولید پر ډبرو ډیر سپین رنګي مرغان ناست وو .

هلك له خپل خان سره وویل : دا هرومره هغه دی چه زه له دوی سره د مخامخ کیدلوپسي راوتلی یم ، دا یې وویل او پر اسپه مخکې ته کښته شو مرغانو چه په کافي اندازه دمه او استراحت کړی وو . نو بیا یې خپل وزرونه رپول او د هوا پر لور یې الوتل کول .

( مرغانو ) یوه اوني د خپلو وزرونو په واسطه او کوچنی هلك پر خپله جادوګره اسپې باندی په هوا کې الوتل کول . له هلك او جادوګری اسپې څخه یې ټول خبر شول او په حیرانتیا سره یې هوا پلټله . ماښام مهال به مرغانو د ریګ په مینځ کې دمه کوله ، او هلك لکړه په لاس له خپلی اسپې څارل .

اتمه ورځ ځنګل له لري ښکاره شو . د ځنګل په مینځ کې یو بحر ولیدل شو مرغان ډیر تږي شوي وو نو د اوبو څښلو لپاره د بحر پر لوری کښته شول . خپلې غاړی یې اوږدې کړې او اوبه یې وڅښلې ورسته یې په اوبو کې ولامبل ، خپل وزرونه یې په اوبو کې ووهل یوازی په دی چه خپل وزرونه یې لانده شول ټول ( ډینګان ) په انسانانو واوښتل . هغوی ازاد پتلونونه ، سره کمربندونه سپینی څپلې ، او بوریایي خولی یې په تن درلودی .

یو له هغو ( ډینګان ) څخه چه په انسان اوښتی وو او سپینه ږیره یې درلوده له هلکه وپوښتل .

ته ولې موږ ښاري او راپسې یې ؟

هلك وویل : غواړم چه وپوهیږم چه تاسو ژمی چیرته تیروی ؟

سپین ږیری چه په ډیره نرمی سره یې خبری کولی وویل :

ښه چه داسې ده نو په موږ پسې راځه . دا یې وویل نو پریوې نری، لار د ځنګل لخوا په حرکت شول . ورسته هغوی یوه ښار ته چه یو څوکوچنې دوکانونه ( پلورنځی ) وو ورسیدل . نو هغوی په انسان اوښتو مرغانو له دوکانو څخه ډیر د خوړلو شیان وپیرل ( واخستل ) او ښار یې پریښود . له هغه ځایه یې یوې لاری ته چی چپ لوری ته مخ ته تللی وه ادامه ورکړه . مخکې تر لمر لویدو یوه کوچنی کلی ته چه کورونه یې د " نل " له لرګی څخه جوړ شوي وو ورسیدل . هغه د ( مرغان ) کلی وو . ټول کورونه د یوبل په څنګ کې پراته وو .

میلمانه د ښځو او کوچنیانو لخوا چه د ( مرغانو ) د قریبانو او خپلوانو له ټولی څخه وو استقبال شول یو سپین ږیری سړی هلك ته وویل :

زویکه ! زه کوچنیان نه لرم چه زموږ خدمت وکړی کوچنیان می چه څرنګه ولاړل بیانه دی را ګرځیدلی . هر وخت چه وغواړی له موږ سره ژوند وکړه !

هلك د یوه ډینګ زوی له خپل خان سره راهی کړ . له مخه تر دی چه هلك هلته پښه کښیږدی ، خپله لکړه یې یوه دیوال ته جګه کړله ورسته د واړه کښینستل . کیسی یې وکړې او بیایې ډوډی او نور خواړه وخوړل . سهار وختی چه لا ټول ویده وو . یو اوښ چه خپل اوښ یې په مټو ښه بار کړی وو له هغه ځایه تیریدی . او ښه یو ګړی ( لږ ساعت ) د یوې ونی بیخ ته ډوډه وهله ، سترګی یې پر یوی لکړې چه دالوبالو د ونې لرګی وو ولیګیدې راوایې خستله ، او خپله لکړه یې چه یوه عادی لښته وه لری وغورځوله . او لاری ته یې ادامه ورکړه .

هلك چه هغه ورځ هر څومره خپله لکړه وپلټله خو پیدا یې نکړای شوله ، نو یې په ژړا پیل وکړ او ویې ویل !

کوم یو غله زما لکړه غلا کړی ده سپین ږیری تسلي ورکړه او ویې ویل : زه به تاته یو بله ښه لکړه له ونې نه درته پرې کړم .

هلك وویل : زما لرګی خو یوه لکړه وه کله چه به د هغې پر مخ کښینستلم په اسپی اوښتله په هوا کې به یې الوتل کول .

او زه اوس څه ډول خپل ځان د خپل مور کورته ورسوم او څرنګه ولاړشم سړی وویل : غمجن کیږه مه ، کله چه په پسرلی کې موږ ستاسو د

کلي پر خوا پرواز کو تا به له ځانه سره یوسو . ښه اوس له موږ سره د سیند غاړې ته د کب نیولو لپاره ولاړشه .

کله چه ( مرغانو ) کوچنی او زیرك هلك د سیند غاړې ته له ځانه سره یووړ نو هلته یې خپل جالونه بحر ته وغورځول . لږه موده وروسته یې یوه ځولۍ ډکه طلایې کبان ښکار کړل . کله چه بیرته کلي ته راستانه شول ، نو یې غټ لرګی تړته . تړ ته کړل ، او اوریې بل کړ . یو دیګ خواږه خواړه یې د کب له غوښې تیار کړل کبانو دومره زیات خوند ( مرغانو) ته ورکړ چه خپلې ګوتې یې ورسره څټلې او په خوند ، خوند یې خوړل .

شپږ میاشتې تیرې شوې . د پسرلي موسم راورسید په انسان اوښتو (مرغانو ) یو ځل بیا د پخوا په شان له خپلو کورنیو سره خدای په امانی وکړه ، او د ځنګله په مینځ کې د اوبو په لوری روان شول . کله چه هلته ورسیدل ، او په هغو اوبو کې یې ولامبل ، دستي په مرغانو بدل شول

هلك ښایسته ګړي فکر واهه ، وروسته یې ځان ناچار ولید نو دی ته اړ شو چه دی هم په اوبو کې ولامبي . نو خپل ځان یې په اوبو کې واچاوو هلك په یوازې لندیدلو سره په رښتیا هم په یوه کوچنيسپین مرغه بدل شو .

مرغان والوتل ، دښتې یې ووهلې ، سیندونه او بحرونه یې طی کړل .

اخر څو ورځې وروسته یو کلي ته چه د هلك کور هلته و ورسیدل .

کوچنی مرغه له لرې لا خپل کلی وپیژندی ، سپین ږیری مرغه د کوچنی مرغه د نیکه د کور پرونې کښیناستی . نور ټول مرغان پرشنو څمکو کښینه شول . په دې وخت کې د هلك مور د دروازې سره ولیدل شوه ، هلك د خپل کور پر لور د خپلې مور پر خوا منډې کړې . خو مور دی ونه پیژندی او چیغې یې کړې : کشه کشه !! څه میرات شی مرغی خونه هم شته څه لاړشه هلته دلته څه غواړې . هلك په مایوسی او نهیلی سره د مرغی خونې پر لور والوت .

څو شیبې وروسته د هلك مور د یوه لګن سره د ویالې غاړې ته لاړه څو خپل لاسونه ومینځي ، کوچنی مرغه بیا د هغې لوری ته حرکت پیل کړ ، خو د ورنیژدی کیدلو زړه یې ونه کړ .

د هلك مور مخکې تر دې چه په جامو مینځلو پیل وکړي خپلې د غاړې غاړګۍ او نوری طلایي سیکې یې د ویالې پرغاړه پر ډبره باندې کښېښودې . بیا یې نولستونې بډ وهل په جامو وینځلو یې شروع وکړه .

په دې وخت کې کوچنی سپین مرغه غلی ، غلی کښته راغی ډبرې ته نیژدې شو غاړګۍ او نورې سیکې یې راواخستلې او له ځان سره یې خپل ځای " مرغی خانې " ته یووړل هلته یې تر نرمو ښکو لاندې پټې کړې .

.... دوبی تیر شو د ژمی موسم په رانیژدیکیدو شو ، مرغانو بیا تودو او ګرمو ځایوته د تللو تکل او عزم وکړ .

کوچنی مرغه په ډیر غم او بد حالت کې خپل پلرنی کور پریښود کله چه مرغان د ځنګله په مینځ کې اوبو ته ورسیدل او لامبو یې ووهله بیا په انسانانو واوښتل . هلك هم دا کار وکړ ، سپین ږیری سړی دا ځل هم کوچنی هلك له خپل ځان سره خپل کور ته بوت او هلته یې ساتی . سږ بیا دوی سهار د سیند غاړې ته د کبانو د ښکار کولو لپاره لاړل .

هلك ډیرغمجن د اوبو له غاړې کښیناست ، خپل جال یې اوبو ته وغورځاو له سترګو یې اوښکې څڅیدې . یو ناڅاپه یو کوچنی کب په یوه جالې کې ونښت د کب نیولو په چنګک باندې دهلك سترګې ولګیدې چه د جال په مینځ کې یو طلایي کب لویدلی دی . کب پرخبرو راغی ، او له هلك څخه یې وپوښتل ، ته ولی ژاړې ؟

هلك ورته وویل : ما د جلا وطنی درد ژړوی ، په خپلو خپلوانو او په خپل کلي پسې ژاړم .

کب ( ماهي ) ور زیاته کړه نو ولی هلته نه خې ؟

هلك ورته وویل : نشم کولای چه لاړشم ، یوه جادوګره لکړه چه په آسپه به اوښتله او زه وربانی سپریدلم او الوتل به یې کول ، یو چا را څخه غلا کړه .

کب په خواب کې ورته وویل : که ته ما بیرته پریږدی او په سیند کې می

واچوی ، زه بیا تاته وایم چه ته څرنګه خپله لکړه لاسته راوړای شی هلك دستی په تلوار سره له جالي کب راوکښی او بیرته یې سیند ته وغورځاوه .
کب د سترګو په رپ کې ورك شو او د اوبو تل ته ولاړ له څه څنډه ورسته بیا د اوبو پرسر ښکاره شو او ویې ویل :
تیر کال په هغه وخت کې چی ته ویده وی ، یو اوښبه د سپین ږیری سړي د کور مخی ته د سهار په وخت کې تیر شو او ستا لکړه یې واخستله اوښبه چه په هغه لرګی خپل اوښ څراوه یوه ورځ له ډیر وهلو د اوښ څخه ستړی شو نو هغه لکړه یې چیرته لری وغورځوله .
یو ناڅاپه لکړه اوبو له خپل ځان سره یووړه . هغه ستا لکړه اوس د ژرندی په حوض کې نیژدی له ګودر سره بنده پاتی ده .
هلك په تلوار سره د ژرندی پر لور لاړ . د ژرندي د حوض په بند کې یې خپله لکړه وکتله ویې پلټله ربښتیا یې هم خپله لکړه په هغه ځای کې وموندله .
نو دستی د لکړی پر مخ کښیناست او چیغې یې کړی ! هو .... زما اسپې ! په دی وخت کې د دغو تورو په اوردیدلو لکړه په آسپه واوښتله هلك د هغې په واسطه هوا ته پور ته شو او د " نل " د لرګیو څخه د جوړ شوی کلی څخه لاړ ، هلك د خپل ټاټوبی او پیدا ځای پر لوری یون پیل کړ .
په هوا کې له اوو ورځو وزر وهلو څخه ورسته خپل پلرنی کلی ته ورسید او ځمکی ته کښته شو ، او په تلوار سره یې د خپل کور پر لوری منډی کړی ، د هلك مورچی د دروازې په مخ کې ولاړه وه ، خپل زوی یې ونه پیژندی ځکه د هلك رنګ په دی دوو کلوکې نابلده شوی وه په قد غټ شوی وُ د مور د ذهن پر پرده یې د هغه د کوچنی زوی کې کوچنی ونه او تنکی خبرې تل راتلی نو ځکه اوسنی رنګ یې نه پیژندی هغه چه خپله مور ولیدله نو یې ورته وویل : مور جانې زه ستا زوی یم له مسافری راغلی یم .
مور یې د ده په خبرو باور رانغلی او ویې ویل : ای زویکه ! زما زوی کوچنی وُ چه دوه کاله وړاندی له دی ځایه ولاړ او ورك شو ، خدای ج " خبر دی او هغه پوهیږی چه هغه چیرته دی ... ژوندی دی او که مړ ؟؟
هلك خپلی مورته کیسی پیل کړی چه په دی دوه کاله کې چیری وو ؟ او څومره سرې او تودی وربانـدی تیری شوی او د جلا وطنی له غمه یې څومره ژړلی دی . او مور یې ترې وپوښتل :
ته څرنګه کولای شی او څه دلیل وړاندی کولای شی چه ته زما هغه کوچنی او پستکی زویکی یې چه دا دوه کاله ورك وي ؟
هلك څو شیبی په فکرکی شو له لږ اند ورسته یې هغه طلایې سکې چه ده په مرغی خونه کې له خپلی مور څخه پټی کړی وې وریادی شوی .
مور ته یې کیسه وکړه چه هغه د کالو وینځلو په ورځ ده ستا له څنګه د ویالی له غاړی څومره شیان پورته کړل او هلته په مرغی خانه کې یې د نرمو ښکو لاندی پټ کړل .
هلك په تلوار منډی کړی بام ته وخوت او په مرغی خونه کې یې د ښکو لاندی پټی کړی سیکی راواخستلی او راکښته شو مور یې د دې سخنې له لیدلو څخه په ربښتیا داډمنه شوه چه دی یې هغه ګلالی او کوچنی ورك شوی زوی دی . مور چی یې له خوشحالی خپلې اوښکی او ژړانه شوای تم کولای په تلوار یې خپل زوی خپلې تودی غیږی ته راکاږی او په خپله غیږکې یې ټینګ ونیو په مخ یې ښکل کړ او ویې ویل :
زویکه : ژمنه راسره وکړه چه بیا به له کوره لری نه ځی خدای دی نکړی چه بیا په کوم مرغو اوړی او والوزی یا په بله کومه بلا وانه وړی هلك وویل : ژمنه او وعده درکوم مورجانی ! دا یې وویل ولاړشو خپله جادوګره لکړه یې د بام سرته یووړه او هلته یې په یوه ځای کې پټه کړه .
هلك له خپل ځان سره ورو وویل : که چیرته زړسوی مې د کب د ساتلو په خاطر نه وای نو نن به د خپلی ګرانی مور په څنګ کې نه وم .
پای .




د سهار له بانګونو سره به یوځای " خیالی " د خپل خوږه خوب څخه بیدار شو . ولی چه دا دهغه عادت وو هر وخت به په همدې وخت کښینستی .

خیالی به ویښ وو خو بیا به یې هم مورچی په " سپیني ادي " په ټول کلي کې مشهوره وه په ډېر ناز او شفقت وربانده ږغ کړه . هغی داسې هم نه ویل بلکی هغی به ویل خیالی ګله زویه کښېنه لمونځ اوس وکړه او خپل رمه دې ځې خای ته بیا په "سپینه ادې" چه یو زړه وره هوښیاره او د ټول کلی لپاره یو مهربانه ادې او د هر چا ناره ترسپینې ادي پوری وه . سپینی ادې هم هیچا ته دنه جواب نه ورکاوه بلکی د هرچا مرستی ته حاضریده .

په دی وخت کې د سپینی ادې یو زوی چه د ټولونه مشر وو په مخامخ جهاد کې د سرو روسانو سره په شهادت رسیدلی وو چی د هغه ناوی لاهم کونډه ورته پاتې وه . کله چه یې زوی په شهادت ورسیدی نو بل زوي یې چې اوس پوره ځوان وو د مجاهدینو جبهی ته لیږلی وو چې هر وخت به یې د نورو مجاهدینو سره یو ځای په عملیاتو کې برخه اخیسته .

یواځی نر کانی چې په کور پاته وو هغه خیالی ګل وو . خیالی ګل چې اوس په تنکی ځوانی وو د ټینګ عظم څښتن او پوره اخلاصی زلمی وو .

دا خوې په هغه کښې ځکه وو ولې چه هغه د سپینی ادې شیدې رودلې وی

خیالی ګل به هره ورځ د روسانو د وحشت او ظلمونو نوی نوی قیصی اوریدلی او د الاځه کوی چه په خپلو سترګو به یې جنګی طیاری لیدلی چې په عامو کلو او خلکو یې بمباری وکړې چه بیا به وروسته خبریده چه فلانی یې شهید فلانی یې زخمي کړې او....

د خیالی ګل په زړه کې د اسلامی جذبې په اساس د انتقام اورونه بلیدل خو هغه په دی تنکی ځوانی کله دومری توان درلود . خو خیر په راتلونکی کې یې امیدونه ډېر وه او دا هر څه یې په خپل ذهن کې ساتل .

نن هم دپخوا په شان د بانګونو وخت وو خیالي هم بیدار شو خو سپینه ادې دخپل عادت سره سمه د خیالی سرته ودریده او په نرم اواز یې ږغ پر وکړ !

خیالی ګله زویه خیالی ګله زویه کښېنه . تاوخت دي لمونځ اودس دی وکړه اوپه خپل کار پسی خه

خیالی ګل هم غاړی تازه کړی او په خپل ځای کښینلت . د پسرلی هوا ده د بلبلو شور دی نسیم د ځان سره د ګلونو تازه بویونه راوړي هر خوا خوشبویه ده .

خیالی ګل لمړی اودس تازه کړ رڼا هم ډیریږی لمونځ یې ادا کړ وروسته د خپلې رمې په فکر کې شو . په خپل رمه یې د هاهه ږغ وکړ . برګ سپي د خیالی د ناری سره سم خپل ځان خیالی ګل ته ورساوه کله به د رمې په یو څنګ او کله بل څنګ به کله مخکی او کله وروسته روان وو

رمې وغره ته د خپل ځړ ځای پر لوری حرکت وکړ.

خیالی ګل هم چې په دستمال کې یې ډوډۍ په شا کړی وه روان و. کله کله به یې په رمه باندی د های هو سره یو ځای یو ناره هم وکړه ( د وطن مینه د ایمان ده په دغه مینه به یې جار کړو خپل سرونه ) لمر ختلی وو چه خپل اصلی منزل ته ورسیدی په پورې سر کښیناست رمه خړیدله خیالی ګل د چینې سره پوری کښیناست. برګ سپی چې د خیالی ګل وفادار ملګری او د ده د رمې پاسدار وو کله به خیالی ګل ته نژدی سر په ځېړو کښینښوستا به ویل چې د څه اوریدلو لپاره انتظار باسی او کله به بیا په رمه کې یوطرف او بل طرف ګرځیده.

نابیره د هلیکوپتر ږغ شو خیالی ګل سر هسك کړ ږغونه نژدی کیدل کله چه وکتل دوه هلیکوپترونه په همدی خوا راځی. د تیښتې او پټیدو لار نشته په خدای "ج" یې توکل واخیست او په خپل ځاي غلی کیناست هلیکوپترونه راورسیدل او د سرنه یې تیر شول خو بیرته راوګرځیدل او د رمې په منځ کې یې کښینول پسونو یوی او بلی خوا منډه کړه او برګ سپي د رمې د ساتلو لپاره غپ غپ شروع کړ.

د هلیکوپترونو نه څو کسان چه شنې سترګی سره مخونه او سره ویښتان یې وه راکوز شوه او په بی رحمانه ډول یې په میږاو پسونو ډزی شروع کړی چه برګ سپی هم د رمې د ساتلو په سرد روسانو لخوا مړ شو له دې وروسته یې څو پسونه هلیکوپترو ته پورته کړه او کله چې یې خیالی ګل ته پام شو چه لکه بت چې ساه ورکې نه وي د چینې پر غاړه ناست دې د خپل ټوپکونو خولی یې د هغه په لوری واړولی او لویه ناره یې په روسي ژبه ورباندی وکړه.

خیالی ګل لکه بت ارام ناست دي روسانو لمړی څو کنداغه وواهه او بیا یې هلیکوپتر ته پورته کړ او یوې ور څه میږی اوپسونه چه د ګولیو نه پاتی شوی وه د پخوانی عادت له مخی کورونو ته ولاړی. کله چې د سپینی ادي سترګی په میږو ونښتی چې یوه او دوي او هغه هم تر خپل وخت وختی ورغلی لویه ناره وکړه چه خدای "ج" مکړه چې په خیالی خو مې څه نه دی شوی چې رمه داسې وختی راغله او خیالی هم ورسره نشته ژر یې په کلی کې نارې کړې.

د کلی څو سپین ږیرو چه دسپینی ادې ږغ واوریده نو دغره په خوا یې مخه وکړه کله چه غره ته ورسیدل ګوري چه ډیرې میږی او هم برګ سپی په خپلو وینو کې سره پراته دي خو د خیالی هیڅ پته نشته یوازی هغه دسمال چه دخیالی ډوډۍ پکښې وه او هم یې د میږو کوتك پیدا شوه. خو خیالی په مځکه ننوت او ورك شو سپین ږیری ډیر وګرځیده چه که شهید شوی وي مړی خو به یې پیدا کړو خو بیا یې هم هیڅ پته ورته ونه لګیده او داسې نا امیده د کلی په لور روان شول.

سپینه ادې د کلی نه د باندی لاره کې ورته ناسته ده او سپین ږیرو لاری ځاری سپین ږیری نا امیده ورته ورسیدل سپینی ادي ورباندی بږغ کړه زما خیالی مو څه کړ؟

سپین ږیرو وویل چې هر څونه کوشش مو وکړ خو هیڅ پته یې راته ونه لګیده خدای "ج" ته صبر وکړه خدا "ج" ساتونکی دي یو ځای به په غره کې پټ شوي وي انشاالله رابه شی واخله دغه یې ډوډۍ او کوتك دي.

سپینی ادې هم شیان واخستل او په زړه پوری یې ونیول له سترګو نه یې غټې غټې اوښکی توي شوی له صبر پرته یې نور وس نه و. بس خداي "ج" ته یې صبر وکړ او هر څه یې خداي "ج" ته پریښودل.

هلیکوپترونه وخپل مرکز ته ورسیدل خیالی ګل لکه منګنی وري د سرولیوانو په پنجو کې لویدلی وو د هلیکوپتره یې کوز کړ. خیالی ګل په خپل مظلومو سترګو یوې او بلی خواته په ځیر ځیر سره ګوري.

کله چې یې د بی شمیره روسانو سره یو ځای څوتنه د توروسترګو او تورو ویښتانو څښتنان هم ولیدل چه هغه هم د روسانو سره یو ځای اوسیږی نو په خپل زړه کې خوشحاله شو او د خلاصون امیدونه یې پیدا شول.

خو کله چه د تورو سترګو او تورو ویښتانو خاوندانو ( افغانی کمونیستانو ) سترګی په مظلوم خیالی ګل ولګیدی نو د سرولیوانو په څیر یې لویه ناره ورباندی وکړه ( ای د اشرارو زو راغلې څه شول هغه نور اشرار څه شول ) چه له دې سره سم یې په مظلوم

خیالی گل باندی د لغتو ځو وارونه وکړل چه له نازك سپین تندی ځخه یې سری وینی د گریوان لوری ته روانی وی .
افغاني شوروپانو ( کمونیستانو ) تر لغتو وروسته خیالی گل په بی رحمانه ډول د اوږې نه کش کړ او په یوه توره کوټه کې یې بندي کړ .
خیر ورځ تیره شوه خو په خیالی گل باندی ورځ نه بلکه یو کال وو .
شپه شوه د سرو وینښتانو شنو سترگو خاوندانو ( روسانو ) او د تورو سترگو تورو وینښتانو خاوندانو ( افغانی کمونیستانو ) ته کبابونه او شرابونه راغله چه د غوښو بویونه یې د خیالی وېزی ته هم راغلل . چه هر ځل به د کړس کړس خندا سره د شرابو د لوښو شرنگی پورته کیده . د ځه وخت نه وروسته ټول نشه شول هر څوك په خپل ځای بیخوده پراته وو .
خیالی گل چې په دې وخت د دروازې د کوچنی درز نه کتل او دا هر څه یې پخپلو سترگو لیدل " د میرویس نیکه " او گرگین " قصه یې وریه زړه کړه چه هر وخت به سپینی ادي ورته کوله چه کله گورگینان ټول په شرابو نشه شول نو میرویس نیکه واري پري وکړ او ټول یې د منځه یووړل .
خیالی ته هم دا صحنه او هغه یو شان معلومیده . خو په دې دواړو کې ډیر فرق وو .
نه خیالی هم دهغه نیکه لمسی او شجاعت یې هم هغه شان وو .
په خپل خام عقل یې خبره غوټه کړه ډیر ځله یې په مغز کې چاڼ نه کړه او جانبي خطرات یې ونه څېړل بس د

خدای " ج " ځخه په کومك غوښتولو سره یې داسی په خپلو عملیاتو شروع وکړه .
لمړی یې په ډیرې خوارې او زحمت سره دروازه خلاصه کړه او په ډیر احتیاط او قراري بهر شو چوپه چوپتیاده خو په لیرې پوستو کښې چه هغه هم د روسانو دي کله کله یو ډز ډوز وشي . دلته ټول بیخوده دي پهره دار هم نشه .
نژدې د یو روسي د څنگ ځخه کلاشینکوف راپورته او د الله اکبر په ناره سره یې په ټولو بشردښمنه لیوانو ډزې شروع کړې او په یوه ثانیه کې یې ټول غلبیل غلبیل او د جهنم کندي ته واستول نور یې دوی پښې خپلی کړی دوې توری او منډه یې واخیسته چه په تنکی ځوانی او نازك مخ یې خولی بهیږی لکه په گلاب چه شبنم شوي وي .
کله چه نورو روسانو دا پیوسته ډزی واوریدي نو ژر یې و دي قرارگاه ته ځان ورساوه گوري چه د ټولو لیوانو خپلی وینی خوراك شوي او ټول هډوکی او غوښې یې سره گډ دي .
حیران شول چه دا ځه پیښه ده ژر یې د قرارگاه شاوخوا د توپونو او ماشینگړو ډزي شروع کړې او ټوله سیمه یې تر اور لاندی ونیوله خو خیالی وختی د یو میل کلاشینکوف سره یو ځای خپلی پښې د دې ځای ځخه سپکی کړي وې او بنائیسته لیری تللی وو . د روسانو ډزو کومه فائیده ونکړه .

خیالی ټوله شپه او هم د ورځې یو ځه برخه مزل وکړ سبا ماپښین ته یې خپل ځان خپل کلی ته ورساوه .
کلي ته چه ورسیدي گوري چه ډیر سپین ږیری یې د کور مخی ته راټول دي . دکلی نه نورې سپین سرې هم د خیالي گل دوې کور ته روانی دي .
خیالی چه ډیر ستړی شوې وو په ډیر زحمت سره یې ځان ورساوه گوري چه یوه جنازه پرته ده وینی ورځخه بهیږی او سپینه ادي یې مخی ته ولاړ ده .
کله چه یې خیالی گل ولیدی نو سپینی ادي حمد او ثنا وویله .
جنازه د سپینی ادې د دوهم زوی وه چی تیره شپه په عملیاتو کې په شهادت رسیدلی وو او سهار یې خپل کورته راوړ .
سپنی ادي زیاته کړه خیالی گله بچیه ما د خپل خیگر قطری قربانی کړي او اوس دي ته حیرانه ووم چه د ورور سنگر دي خالی شو نو دا چه ته خدای " ج " دومره کړي چه د ټوپك د اخیستلو یې نو ورځه د خپل ورور سنگر ته زه به هم هغه وخت خپلی شیدې در وبخښم چه ته هم دخپلو ورونو په شان ځان په سرو وینو کې د اسلام او وطن لپاره شهید کړې .

پای



لیو ال

# د فرهنګي بیا رغونې پر لور

هره جګړه ځپلې ټولنه همدا چې د آرامۍ او کرارۍ ساه و باسي نو سمدلاسه یې د بیا رغونې هڅې بنایې پیل شي ځکه جګړه دورانۍ او بربادۍ میراثونه پریږدي

افغاني ټولنې هم شل کاله وراني وزغمله او اوس یې بیا رغونې ته اړتیا شته " فرهنګ " د نوې پېژندنې له مخې د یوې ټولنې د معنوي جوړښت او د اقتصادي پر مختګونو ټول بنسټونه په ځان کې دا نغاړي له همدې ځایه ده چې لومړی بنایې فرهنګي بیا رغونې ته متې را بډ وهل شي د فرهنګي بیا رغونې پر لور لومړي ګامونه له کوم ځایه پیلیدای شي ، په دې څو کرښو کې به هڅه وکړو دغې پوښتنې ته ځواب پیدا کړو

تر هر څه مخکې باید هڅه وشي عامه ذهنیت د دې ډول بیا رغونې اهمیت ، لومړی توب او ضرورت ته متوجه شي . یوې چارې ته د عامه ذهنیت را اړول ډیر کار غواړي نن سبا چې ټولیزې رسنۍ د بشري ټولنو او وګړو تر منځ د اړیکیو د لویو وسیلو په توګه په دغې برخې د کار او دندې لومړنۍ سنګرونه دي د دې سنګرونو ساتونکې ته

ښکاره ده چې لیکوالان او قلم په لاس کسان دی له همدې ځایه دی چې د هیلو ډیرې سترګې دوی ته وراوړی ټولیزې رسنۍ ( مطبوعات ) بنایي په ګډه هڅه او پلان شوي پروګرام د یوې منظمې پروسې په اوږدو کې ټولنیز ذهنیت د عامه بیا رغونې په لور را اوړي . د دې اصل تلقین خورا اړین ( ضروري ) دی چې نور نوښایې ټولې هڅې او تلاشونه دې لارې ته وقف شي چې څنګه ورانۍ ودانۍ شی له لاسه تللې پانګې بیرته لاس ته راوړل شي او فرهنګي زیانونه بیرته جبران شي ، د مطبوعاتو او ټولیز ورستیو ټول چارواکي کړای شي ټولنیزو اړیکیو ، افکارو او چارو ته د یوه منظم میکانیزم په مرسته لارښوونه وکړي خپل منځی اړیکی ، بهرنۍ اړیکي او له غربي په اصطلاح مدنیت سره د برخورد مسئله بنایي وڅیړل شي . مثلا په دی خبره غور کول په کار دی چه څه ډول باید اقتصادی پرمختګونه تر لاسه کړو . خو تر څنګه یې خپل ویاړلی ملی اسلامي فرهنګ او دود هم وساتو څه ډول کولای شو چې یو ودان او

خواکمن افغانستان ولرو چې د اقتصادي بریا ترڅنګه ملی او مشخص کلتور هم ولري . دا ټولې هغه پوښتنې دی چې زموږ لپاره حیاتی اهمیت لري په دې برخه کې ځوان لیکوالان ، فرهنګۍ کړی د مطبوعاتو چارواکي لکه څنګه مو چې مخکې وویل کار نده ونډه لري . راځی چې پیل یې کړو ، بیارغونې لپاره بنایي ځواکمن نظرونه او پخې تیوري ګانې زموږ د مطبوعاتو د مخ زینت وي همرا چې لاره مو وټاکله بیا نو ټولنه کړای شي د بیا رغونې پر لور چټک ګامونه واخلي

پای

# چې همسا نلری ....... پاتې برخه

په ځای مو صلوه او صوم استعمال نکړل خو کلمه ، حج او زکات توری مونه درلودل هغه مو په عربی ژبه خپل کړل په عربی آن په قرانکریم کې غیر عربی توری شته ، او انګلیسی ژبه خو یوازی زر توری خپل لری ، نور ټول پردی پکښې داخل دی . ویې ویل : نن پښتو ژبی ته کار کیږي خو کاشکی همدا کار په دننه کې شوی وای . دا ګیله یې هم وکړه چې افغانان په بهر کې خورا ډیر فرهنګی او علمی کارونه کوی ، خو امارتی چارواکی ورسره اړیکی نه ساتی ډیری داسی ټولنی ، خپرونی او اشخاص شته چې د اسلامی امارت په پلوی په لویدیز کې وهل شوی ، سپك شوی ، خو څوك ورسره ارتباط او مرسته نلری

ما یوه پوښتنه دا هم وکړه چې شاه محمد رشاد له تاسو سره څه کورنۍ اړیکی درلودی ؟ هغه وویل : نه ، شاه محمد رشاد او محمد شاه ارشاد له دارلعلوم څخه فارغ شوی پوهان او صالح کسان وو . شامحمد رشاد د پیام حق مسئول چلوونکی وو . او د الوتکی د لویدلو په پیښه کې شهید شو . شاه محمد رشاد د پښی څه تکلیف درلود ، نو همسا به یې ګرځوله . یوه ورځ شاه محمودخان ( که دا نوم زما حافظی غلط کړی نوی ) وویل : زه دا شاه محمد رشاد او محمد شاه ارشاد نه سره پیژنم . نومونه او تخلصونه یې سره ډیر ورته والی لری . یو کس چې لیکوال او ظریف شخص وو . ورته وویل : " آنکه عصا دارد ، الف ندارد " کوم یو چې همسا لری هغه په تخلص کې ( الف ) نلری یعنی د همسا د څښتن تخلص ، رشاد او د دا بل ارشاد دی . هغه دا هم وویل : اوس مې اتیا کلونه پوره کیږی ، شپیته کاله کیږی چې له لیکنی سره سر او کار لرم ، هر څوك په انسانی طبع په دی خوشحاله کیږی چې آثار یې خپاره شي خو زه له دی امله هم خوښ یم چې هر شي زکات لری زما د عمر زکات همدا اثار دي . ( خدای " ج " دی ورته قبول کړی ) ساعت یوه بجه راته ښودله چې د راوتلو اجازه مو د غوښتله ، د خونی تر دروازی راسره راغی . زه مینه وال صاحب او سحر صاحب یې مینه رخصت کړو . هغه ماشاالله پدی عمر دومره تکړه وو چې د خبرو په پیل او پای کې یې توپیرنه لیدل کیده .

هو ! هغه یعنی رشاد سرمحقق ، پوهاند عبدالشکور رشاد صاحب . په عمر ، پوهه او قلم دی برکت وی .

# څو شیبې د مسکا په لټون

## پلار مې په هغه بله ونه کې دی

یو ورځ یو هلك د یو باغ ونې ته د میوې د غلاکولو په نیت ختلی وُ چې ناڅاپه باغوان ورباندې راغلی او هلك یې له ونې راکښته کړ ورته وویل چې راته پلار ته دې د غلا ووایم . هلك ورته وویل : تکلیف مه کوه پلار مې و هغه بلې ونې ته ختلی دی.

## وصیت

یو سړی و خپلو دوستانو ته وصیت کاوه او هغه یې ټول د خپل زوی په واسطه وخپل کور ته راوبلل او ورته یې وویل کله چې زه مړ شولم نو ما په زړه هدیره کې ښخ کړی په زاړه قبر کې زما د پلارو څنګ ته دا ځکه چې کله چیری د عذاب فرشتې راشي زما قبر به زوړ او پخوانی ووینی او زما څخه به یو پوښتنه ونکړی . او دا فکر به وکړی چې دا مړی زوړ او پخوانی دی .

## موږک او فیل

یوه ورځ یو موږك پر لاره روان وو چې غماشی پوښتنه ځنی وکړه چیرته روان یې موږك ځواب ورکړ ځم فیل ته وینه ورکوم

## حیوانات

یو ورځ څو حیوانان سره راټول شول او دا پریکړه یې وکړه چې ټن به له بازاره ښه خوراکونه راوړو نو د راوړلو لپاره یې کشف و بازار ته ولیږې له ډیر وخته وروسته کله چې کشف بیرته راستون نشو حیوانانو یو شمیر د ګوتو وځنډ او ویل دا کشف خو دومره سست دی کشف چې یو څو ګامه لیری تللی وُ پر ږغ کړ که چیری غیبت کوی نو بیا نه ځم .

## په بازار کښې

په بازار کښې یو نفر پر سیکل سپور وو د تلولو په حالت کښې یې یو نفر په سیکل وواهه هغه ورته وویل چې وروره څه کوی لوی بیرتونه دی نیولی دی هغه سیکل والا ورته وویل چې وروره خبره په بریتوکښې نه ده خبره په بریکو کښې ده .

## د حیواناتو عمر

د حیواناتو پیژندلو یو معلم له شاګرد څخه پوښتنه وکړه چې د آس او نور دغه رنګه حیواناتو عمرونه له څه شي څخه معلومولای شی ؟

شاګرد : د غاښو له مخې

معلم : څرنګه !

شاګرد : که چرګ او چرګه زاړه وي نو د هغوی غوښې په غاښونه ژوول کیږی او که چیری ځوان وي‌نو غوښې یې په ډیری نرمې سره په غاښو ژوول کیږی

## ساده سړی

یو ساده سړی په یو توت کې پریو ښاخ سربیره ناست وُ او د ښاخ بیخ یې اره کوی . یو پوه سړی ورته وویل څه کوی راوبه لویږی . ده د دی سړی پر خبره غوږ ونه نیوی نو کله چې ښاخ مات شو نو دی راولویدی نو ژر د ژره په هغه سړی پسې وځغستی او د هغه څخه یې پوښتنه وکړه ته څه وپوهیدلی چې زه رالویږم




نږدې ټوله شپه یې څه د کار او څه د خوښۍ له کبله په ویښه تیره کړې وه ، هغه شپه وربـاندې د کـال غونـدې اوږده شـوې وه او د سـهار راتلـو تـه داسې منتظروه لکه روژه تـي چې د ماښام راتلو ته انتظار باسی په یو او بل اړخ اوووښت راووښت ، آخر د ژونـد د نورو شپو په څیر دغه شپه هم تـیره شوه ، د ځمکې او نـورو کائیناتو لـه مخی څخه د شپې تور بخملـي څادر ونغښتـل شـو او پـر ځای یـې د لمـر زرینی وړانګې خپرې شوې . چه سهار شـو د لمـانځه لـه ادا کولـو او چـای څښلو څخه وروسته یې هیڅ ځنډ ونـه کړ . سمدلاسه هلتـه روان شـو چیرتـه چې دی ډیر کاله په یخنۍ کې په ګرمي کې ، په باد کې په باران کې ، کله په تش او کله په ډك نس په لـوڅو پښو او لـوڅ سـر تللـی او راغلـی وه .

خو د ده دنن ورځی تګ د نـورو ورځو له تګ سره ډیر توپیر درلود ځکه دی نن په یوه ځانګړې مینه او شوق ، د یو عالم جذباتو او مینی په بدرګه د یوه خاص او عالی هدف د ترسره کولو او یوه سپیځلي ارمان د پوره کولو لپاره هلته روان وه .

هو ! ښوونځی یادوم ، چیرته چه ده له " الفبا " څخه نیولـې تـر لیـك لوسـت اخلاقو ، د ژوند مفهوم ، د انسانیت مفهوم . مقام مسئولیتونو او وجایبو پورې هر څه پیژندلې وه . دی نن هلتـه روان وُ د کـوم ځای محیط چـه دده پـه زړه کې لـه هیوادوالو سره د مینـی او اخلاص یوه دنیا ودانه کړې وه . د کوم ځای چاپیریال چه د ده په زهـن او فکر کې د وطن پالنی او ولس تـه د خدمت روحیه وروزلی وه ، دی په ډیره خوښی ، درنو او ګړندیو ګامونو د ښوونځی پر خوا روان شو ، د درسی ساعت لـه پیـل څخه نـژدې نیـم سـاعت وړانـدې ښونځی ته ورسیدی . ملازم یې هم په لیدو حیران شو چې ښوونکی صاحب څنګه له نورو ښوونکو او زده کوونکو څخـه دومـره وختـي نـن ښوونـځی تـه راغی خو چه د ده روحیات او ښه یې ولیده ، نو له یوې فوق العاده خوښي څخه پرته یې د ده په څیره کې د نور څه شـي نـښې تـر سـترګو نشـوې ، ښوونکـی صاحب سـیخ د ښوونـځي اداري تـه ننـوت پـه چوکـۍ بـاندی کیناست او د اداري کړکـۍ څخه یـې بهر د ښوونځي انګړ تـه کتـل ، د فکر مارغه به یې د کلونو ، کلونـو شـاته والـوت . کلـه بـه یـې خپـل ښوونکـې وریاد شول او کله به یې خپل خواږه ټولګیـوال سـترګو تـه درېدل او سلګونو خـاطرو به په مخه کړ بیا به یې چې د ښوونځي د هغه وخت هسك دیوالونه ، پراخه کـلا ، لویه او ښکلې دروازه ، د والیبـال میـدان ، د ښوونـځی ونـی ، ګلان او چمـن وریـاد شـول او سـنیو رنـګو او ویجـاړو دیوالونو ، وچو نیـالګیو او ګلونو پـر ځای اغزوتـه وکتـل نـو وبـه بوږنیـده بستر بـه یـې وخوځاوه تـودی نـورې ښوري سترګې به یې وریولې او بیا بـه یې نابیره په رګونو کې د خوښۍ یوه طوفـاني او ګړنـدۍ څپـه وځغلیـده او وبه یې ویل هو! په ژوند کې خو داسی غورځې پر ځې راځي خوښه وشوه چې هیواد او کورونه مـو وربـاندې رنـګ کړل خو وربـاندې ومونه پلورل سرونه مو ترې غوڅ او پرې غوڅ کړل خو ورته تیټ مـو نـه کړل . د ژونـد فطـرت همداسـې دی چـې همیشـه " د زور ورڅپلی او د خوار ککری وي " .

هر څه فنا کیږی ، تیریږي خو هیریږي نه . په هر حال اوس باید تنکی او نوی نسـل داسی ور وزو چې لـه دې سـره ، سره چې د خپلو پلرونو پـه غـیرت او اتلولي باندې ویاړ وکړي . پخپله هم د هغوی پرپله پل کیږدي . او د هغوی د غیرت ، همت ، قربانی او قهرمانـی لـه قصو څخه عبرت واخلي د هغـوی تګلاره تعقیب کړي او د ژونـد لپـاره یې سرمشق وګرځوی خپـل زامن باید پـه داسـې روحیـه وروزو چـې تـل لـه

داسې ستونځو او نا خوالوسره د مقابلې لپاره چمتوو اوسي . او پرديو ګذارونو ته سينه سپر کړي ، سرونه قربان کړي خو د ګران هيواد له سپيڅلي حريم څخه د دفاع مورچل تل ګرم وساتي . هغوی ته بايد داسې روزنه ورکړو چې د دې ټولو ورانيو ودانولو ته چمتو ، د دې ناورين ټول کورنۍ او بهرنۍ عوامل تشخيص او په آينده کې يې د تکرار د مخنيوي لپاره تيار واوسي .

ښوونکی صاحب به چې د دغو فکرونو او کړلو ، ريبلو له جاله ووت په چوکۍ کې به يې تکيه ولګوله له جيب څخه به يې يو اوږد او پلن کاغذ راويست په ډير دقت او ژور نظر سره به يې ولوست . کله به يې کاغذ په يوه لاس کې ونيو د بل لاس سبابه ګوته به يې سرته ونيوله داسې بريښيده چې ګوا کې فکر کوي چې څه شی خو به له ليکلو څخه نه وي ورنه پاتې شوی او که يې وريه ياد شي چه اوس يې وليکي کله به بهر ته راووت او کله به بيرته اداري ته ننوت د شاګردانو بهير هم ښوونځی ته رامات وه . ښوونکی هم ټول راورسيدل . ده به ژر ژر خپل ساعت ته کتل چې د درس وخت ته څومره وخت پاتې دی . کله چې سرښوونکی راورسيد نو له روغبړ څخه وروسته يې ښوونکی صاحب ته په خندا وويل . پرون خو دې ډير ستړی کړم په خپله غوښتنه دې ټينګار کاوه نن څکه دومره وختي راغلی يې ؟ ده هم په مسکه لهجه ځواب ورکړ " هو! صاحب همداسې ده " په رښتيا هم هغه پرون له سرښوونکي سره ډير سرخوږولی وو .

سرښوونکی پرون ده ته په داوار ويل چې : ښوونکی صاحب ! تيره ورځ يوازې ته نه وې دانور ټول ښوونکې موجود وو د ټولو په مشوره مو مضامين وويشل ، مهال ويش مو ترتيب کړ ، ستا لپاره ما خپله مضامين خوښ کړل ، ته خو د کار ښه سابقه لرې ، په مها جرت کې دې هم د ښوونکي په حيث دنده ترسره کړې هر ډول مضامين دې تدريس کړي دي په مختلفو سيمينارونو او کورسونو کې دې ګډون کړی دی . ښه روزل شوی يې په خپل مسلك کې ښه رسيدلی او پياوړی يې د کار ښه پخه او اوږده تجربه لرې ، کوم مضامين چې ما او نورو ښوونکو ستا لپاره خوښ کړي دي همغه صحيح دي . ستا غوندې پياوړي او مجرب ښوونکی لپاره خو د دغو مضامينو تدريس مشکل نه دی نو ولې اوس ماته اړم يې اوټول مهال ويش راباندې له سره بدلوې . ده ورته وويل " چې اوهو! سرښوونکی صاحب ! " زه وږ آمر يې ستاسو د هر امر تعميل ته تيار يم . دا چې کوم مضامين تاسو راته ټاکلي دي په ډير افتخار او ډيره خوښی سره يې تدريس ته حاضر او تيار يم خو يواځې تاسو ته دا عرض وړاندې کوم چې د دوو ټولګيو د تاريخ مضمون ضرور ماته راکړی . سرښوونکی سر وخواځاو او په خندا يې وويل زه درته وايم چې نور ښوونکي هم شته هغوی هم بايد کار وکړي . زه همدغه مضامين چې مونږ درته ټاکلي دي زيات ګڼم او ته لا نور هم غواړې ؟ ده ورته وويل : " سرښوونکی صاحب ! دا چې زه کوم مضمون درڅخه غواړم نو دا ځان لپاره له مکلفيت څخه زيات کار او زحمت قطعا نه ګڼم بلکه دا به ستاسو يوه لويه مهرباني او د اداري له خوا د ځان لپاره يو امتياز او وياړ وبولم زه غواړم چې ډير کار وکړم .

سرښوونکي بيا ورته وويل : " خير دی د کال په اوږدو کې د ښوونکو تبديلي پيښيږي . اداري کارونه ډير دي په هغو کې به ته له ماسره مرسته وکړې .

" ته نو اوس ولې د تاريخ په مضمون پورې داسې کلك نښتی يې او ټينګار کوې چې زه ددغه مضمون تدريس کول غواړم . ده ورته په ځواب کې وويل : " سرښوونکی صاحب ! متاسفانه چې ستاسو د دغه سوال د ځواب لپاره زه الفاظ نلرم خو په لنډه توګه به زه دومره درته ووايم چې ددغه مضمون په تدريس پورې زما يو جهان ارمانونه تړلي دي

اوس نو ستاسو خوښه که زما دغه آرمانونه پوره کوې او که يې خاورې کوې .

سرښوونکی ناچاره شو ، مهال ويش يې له سره ترتيب کړ او ده ته يې د ده د خوښی سره سم د تاريخ مضمون ورکړ او نن چې څنګه د ښوونځی زنګ ووهل شو شاګردان خپلو ټولګيو ته ننوتل . ښوونکي صاحب خپل تيار کړی درسي پلان ، چې تېرې ګرده شپه يې ورباندې رونه کړې وه ، ورسره واخيست يو ځل يې بيا د ښوونځي په چاپيريال باندې ځغلنده نظر واچاوه خپله پګړۍ يې پر سر سمه کړه ، ويې ويل : شکر خدايه ج " چې نن په خپلواك افغانستان کې خپلو ورونو ته په همغه ښوونځی کې چې زه پکې شاګرد وم د خپلې خوښې

( دتاریخ ) د مضمون د تدریس لپاره د ښوونکی په حیث ټولګی ته ځم ، ټولګي ته ننوت ، په ورین تندي ، خوږه ژبه او پسته لهجه یې له زده کوونکو څخه احوال پرسي وکړه ، بیا یې د شاګردانو د توجه جلبولو یا ذهني روزنه او هڅو نه پیل وکړ کله یې چې د زده کوونکو توجه په بشپړه توګه ځان ته جلب کړه ، نو ویې ویل : ګرانو شاګردانو ! اوس به مونږ او تاسو د درس په لوستلو پیل کوو ، په توره تخته باندې یې په غټ او ښکلي لیك ولیکل " تاریخ " د درسي پلان سره سم یې د تاریخ په معرفي کولو پیل وکړ . د تاریخ تر عنوان لاندې یې د تاریخ تعریف په توره تخته ولیکه " تاریخ د تېرو خلکو کړه ، وړه له وخت او ځای سره رانښیي " په داسې حال کې چې خپل تیار کړی درسي پلان یې د میز پر سر ایښی و ، ویې ویل . ګرانو زده کوونکو ! دا مضمون ما پخپله خوښه څه چې په ډیر تېنګار سره مې اخیستی دی ، زه غواړم چې د کتاب پر محتویاتو سربیره تاسوته د تاریخ په باب نور ډیر څه دروښیم په تیره بیا د ګران افغانستان د زرین تاریخ له هر باب څخه تاسو په مفصل ډول خبر کړم . زمونږ د ګران هیواد اوږد تاریخ په نړۍ کې یو بې ساری ځلانده او ویاړلی تاریخ دی . زمونږ تاریخ د اتلولیو قربانیو ، غیرت ، هیواد پالنی او خپلواکي ساتلو یو نړیوال مثال او د حماسو مجموعه ده .

زمونږ ملت ، اتل ، غیرتی اوپه دین ، هیواد او ولس مین ملت دی زمونږ د پلرونو د غیرت ،همت ، شجاعت او قهرماني کار ناموته د نړۍ ډیر لوی ځواکونه ګوته په غاښ دي . همدغه زمونږ پلرونه او نیکونه و چې د سکندر لښکر یې په تیښته وځغلاوه . د چنګیز غرور او قوت یې له خاورو سره خاورې کړ . انګریزان یې د درې ځله په شرمونو وشرمول . د صفویانو د ویني لښتي یې وبهول . او دتیښتی لاره یې ورڅخه ورکه کړه . درې کاله وړاندې زمونږ مجاهدو خلګو د وخت سترمادی ځواك ( روسی پوځ ) پر شا وتمباوه . د هغوی او یا کلن زور یې اوبه کړ ، د هغوی پر بې شمیره عسکرو یې میندې بورې کړې ، له خپلې خاورې څخه یې د تورې په زور و شړل او د "شوروي اتحاد " د سترې امپراطوري کمبله یې د ابد لپاره ورټوله کړه

نه یواځی دا چې یوه امپراطوری یې دړې ، وړې کړه بلکه ورسره یې یوه مفکوره چې د "اشتراکیت " مفکوره وه په خپله زالګو کې ترچړې تیره کړه همدغه زمونږ او ستاسو په سیمه کې مسلمانو او مجاهدو افغانانو په زرګونو روسي عسکر او د هغوی داخلي غلامان ووژل . د هغوي په سلګونو ټانکونه او عسکري موټر یې وسوځول . د هغوی ګڼ شمیر الوتکی یې پر ځمکه رانسکورې کړې . ښوونکی صاحب په دغه مهال دومره جذباني او احساساتی شو . چې د خپل تیار کړي درسي پلان قدمونه یې هم له یامه وغورځیدل . هغه د خپلو مجاهدو هیوادوالو په هکله نور هم ډیر څه ویل غوښتل چې د ټولګی له وروستي قطار څخه یوه زده کوونکۍ چې همدا اوس ، اوس له خپلی کورنۍ سره له مهاجرت څخه هیواد ته راستون شوی وه د ښوونکی صاحب . د خبرو لړۍ ورغوڅه کړه په خپل ځای ودریده ، ویې ویل : استاده ! ښښته غواړم یو سوال لرم که اجازه وي . " ده اجازه ورکړه ، او زده کونکی خپله پوښتنه داسې وړاندې کړه " ښوونکی صاحب ! تاسو وفرمایل چې زمونږ د سیمې مجاهدینو په تش لاس ، د ایمان په قوت د روسانو زیات شمیر ټانکونه او موټرې وسوځولې او دهغوی ګڼې بم غورځونکې الوتکې یې رانسکورې کړې ، زما پوښتنه داده چې که رښتیا داسی شوي وي نو دهغو سوځیدلو ټانکونو او الوتکو خو زمونږ په سیمه کې هیڅ نښه نښته هغه څه شول ؟

د زده کوونکی پوښتنه نه وه په ښوونکي صاحب باندی د توپ ډز وه لاسونه یې مړه شول لینګي یې وګړېدل . ښه یې والوته ، تندی یې تروش شو . ژامې یې سره ونښتې په خوله کې یې لاړې وچې شوې ، شونډې یې تر غاښونو لاندې کړه . د زده کوونکې پوښتنې ته له خواب ورکولو پرته ، په داسې حال کې چې درسي پلان یې پرمېز پرت پاتې شوله ټولګي څخه روان شو .

له ځان سره یې وروغوندې وویل : خدایه ( ج ) ! د دغه شاګرد د پوښتنې د ځواب ، د مجاهدینو بري او د روسانو د ( ماتی ) د ثبوت لپاره دوی لنډي کوتل ، میرانشاه او که چمن ته بوځم .

پای

# څپه ځیرکتیا و ازمایست

## د تیرې ګڼې ځواب

| ١٥ | ١۴ | ١٣ | ١٢ | ١١ | ١٠ | ٩ | ٨ | ٧ | ٦ | ۵ | ۴ | ٣ | ٢ | ١ | |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ا | ن | ی | س | ن | ب | ا | ■ | د | و | ر | ه | ا | ر | ف | ١ |
| ی | ل | ا | د | ب | ا | ■ | پ | ■ | ی | ن | ا | غ | ف | ا | ٢ |
| ن | ■ | ■ | ■ | ي | ■ | م | ل | خ | ■ | ا | ■ | ■ | ■ | ر | ٣ |
| ه | ا | ن | ګ | ■ | م | ن | ■ | و | د | ■ | ا | م | ا | ی | ۴ |
| ګ | ن | ج | ■ | ر | ا | ل | پ | ر | و | م | ■ | ل | ت | ا | ۵ |
| ش | ا | ■ | س | و | ■ | ی | ل | ک | ■ | ک | ب | ■ | ل | ب | ٦ |
| ا | ■ | ه | ر | ه | ز | ■ | ا | ■ | و | ر | ا | م | ■ | ی | ٧ |
| ■ | ه | ګ | ن | ا | ړ | و | ■ | م | ا | س | ر | ې | ب | ■ | ٨ |
| س | ■ | ی | ګ | ن | م | ■ | ا | ■ | ی | ک | ا | ه | ■ | ب | ٩ |
| خ | ا | ■ | ر | ی | ■ | ر | و | چ | ■ | و | ن | ■ | ک | ی | ١٠ |
| ی | ر | م | ■ | ت | ■ | و | ر | و | ■ | ب | ■ | س | ن | ټ | ١١ |
| م | ی | ■ | س | ■ | ب | ر | ■ | ر | ت | ■ | ت | ■ | د | ن | ١٢ |
| ر | ا | ■ | ه | خ | ■ | م | و | ه | ■ | م | ن | ■ | ه | ی | ١٣ |
| ا | ن | ل | ا | و | ی | ■ | م | ■ | ه | ت | ا | ر | ا | ک | ١۴ |
| ر | ا | ه | ر | ګ | ن | ن | ■ | س | ی | ل | و | ک | ر | ه | ١۵ |

په تېره ګڼه کې د میوند کندهاري او عبدالحمید ترابي لخوا رالیږل سوي کیسیو ( معماوو ) او جدول ته د کندهار مجلې دغه درنو لوستونکو د ځواب او وړ تورو موندلو هڅه کړې ده . د هغو نومونه او د کیسیو سم ځوابونه او د جدول حل په لاندې ډول دي .

نومونه :

١ عبدالجبار مشفق له ارغنداو څخه .
٢ عزیزالرحمان اسحاقزی له نوی ښار څخه .
٣ سلطان یار " فقیر " له ماله جات څخه .
۴ تور غني له ښکاپور دروازې څخه .
۵ چارګل " ځوان " له چار کوڅې څخه .
٦ عبدالودود " حق لار " له کابل دروازې څخه .
٧ ملا ښاد ګل له شاجوی څخه .
٨ جهانزېب نسیم .

ځوابونه :

١- کیسی : لاس او پښې یې دي تړلې ...
ځواب : هغه غر که ده چې خوله یې په واښکې تړلې او لوړه بنده وي لکه زینډی لاس او پښې یې هم تړلې دي ، ماښام ارامه پرته وي او سهار چې شاربل کېږي نو په حرکت کې وي او ژوندی بلل کېږي .

٢- کیسی : یو شی دی چې په هره اندازه یې کشوم ...
ځواب : هغه ( سګرېټ ) دی ځوک چې یې څکوي او خولې ته یې کشوي نو سګرېټ کرار کرار سوځي او لنډیږي . او د ژوند مانا هم ورکوي چې هر څونې اوږدیږي مرګ ته نژدې کېږي .

٣- کیسی : سره ګرځي سرګردانه ، هر طرفته روی ګردانه ...
ځواب : هغه ( بادپکه ) ده چې هر طرفته ګرځي هر چاته یې مخ دی .

۴- کیسی : یو شی دی چې هر څه یې پیچې اوږدیږي ....
ځواب : موضوع ، بحث او علم دی .

۵- کیسی : یو شی په ورځ کې ګرځي ماښام راسي وخپل ...
ځواب : بایسکل دی چې ماښام پر پایه درېږي .

٦- کیسی : مخ وشاته کېږي تور وېښتان ...
ځواب : هغه ( غړکه ) ده چې د شربلو په وخت کې شاومخ ته کېږي تر خولې یې شلومبې راوځي او د کلي خلکو ته یې ورکوي .

٧- کیسی : په غار ننوتلې پکښې ګرځي دوري ...
ځواب : هغه ( د پرتوګ ښ لرګی دی ) چې د پرتوګ په سروزنه کې د پرتوګاښ اچولو په وخت کې د ننه کېږي او تر بل خای راوزي او پرتوګاښ په پسې وي .

عبدالواسع هڅیال

# د کندهار د اوبو او برېښنا رئیس سره مرکه

# د کندهار بناریان څه غواړي؟

موږ په دې ګڼه کې د کندهار د اوبو او برېښنا د رئیس سره مرکه کړېده هیله ده په پوره غور یې وګورئ.

پوښتنه : د کجکي په بند کې څو توربینه په کار لویدلي او ظرفیت یې څومره دی؟

ځواب : د کجکي د برېښنا په ستیشن کې دوه توربین " جنراتورونه " په کار لویدلي دي. په اعلی توګه د هر توربین تولیدي ظرفیت ۱۶،۵ میګاواټه دې چې جمله (۳۳) میګاواټه کیږي. البته د کجکي د کاسې د اوبو په ذخیره اړه لري په دې مفهوم چې که د اوبو لوړوالي په ذخیره کې د تولیدي ګراف سره مطابق وي د توربین تولید تر ۱۶،۵ میګاواټه پورې رسیږي او که د اوبو ذخیره کمه وي نو د اوبو لوړ والی سم وي. ۱۶،۵ میګاواټه برېښنا نشي تولیدولای چې بد بختانه دا ستره ستونزه د اوسنیو وچکالیو زیږنده ده او توربین په اعلی توګه کار نشي کولای، همدارنګه د کجکي د برېښنا توربین تر شل کاله زیات کیږي چې په کار لویدلي دي او په دې شلو کلونو کې په اساسي توګه نه دي ترمیم شوي خو بیا هم زموږ د ډیرو تکړه کارکوونکو لخوا څخه تر اوسه پورې فعاله ساتل شویدي خو په خاصه توګه یې سمه ستونزه نه ده حل شوې.

پوښتنه : یوازې د کندهار ښار ته څو کیلو واټه برېښنا راغلې ده؟

ځواب : د کندهار په ښار کې فعلاً یو ستیشن د ۲۵ میګاواټه امپیره په ظرفیت نوی مونتاژ شوی او د کندهار ښار ته د هغه څخه برېښنا توزیع کیږي چې په روان (۱۴۲۱) ه ق کال په تیرو لسو میاشتو کې څه د پاسه ۵۸ میلیون کیلوواټ برېښنا توزیع شویده.

پوښتنه : لومړی داسې ګڼګوسي وي چې برېښنا دومره زیاته ده چې تر سپین بولدک پورې به ورسیږي خو اوس یوازې د کندهار ښار نه شي روښانه کولای د دې لامل څه دي؟

ځواب : د کندهار ښار نظر د شل کالو پخوا نه اوس الحمد الله مخ د پرمختګ په حال کې دی نوي فابریکې او نوي کارځایونه (ورکشاپونه) په کار لویدلي دي. چې د برېښنا موجوده ستیشنونه دا تولید نشي حل کولای. تر سپین بولدک پورې به هم انشاالله ورسیږي. اول خو د کجکي څخه تر کندهار پورې تقریباً ۲۰۰ کیلو متره

فاصله ده او د برېښنا مونتاژ " ۱۱۰ " کیلو واټه دی چې تر پورته فاصلې اضافه برېښنا نشي انتقالولای . البته په پلان کې شته چې د کجکي د برېښنا بل ستېشن او هم په موجوده ستېشن کې د دریم توربین نصبول به دا امکانات میسر کړي . چې دبرېښنا توزیع دی نوره هم وشي چې دا راتلونکي پلانونه دي

پوښتنه : تر اوسه د کندهار ښاریانو ته څو پایې مېټران ورکول شویدي دا لړۍ اوس هم جریان لري ؟

ځواب : تر اوسه په کندهار ښار کې ( ۱۳۰۰۰ ) دانې یو فاز مېټران او ( ۵۱۰ ) درې فازه مېټران د کندهار محترمو ښاریانو کارځایونو او فابریکو ته توزیع شویدي ، چې اوس فعلاً د ژمي د یخنۍ او د شبکې د ستونزو له امله په موقت ډول توزیع د اوس لپاره بنده ده .

پوښتنه : داسې اورو چې تاسې اوس یوبل توربین هم په کار اچوی هغه به یوازې د اسلامي امارت د بودیجې په لګښت جوړیږي او که بله مرستندویه موسسه یې درته جوړوي ؟

ځواب : د دریم توربین د نصب په اړوند باید ووایم چې یوازې د یوې چینایي کمپنۍ متخصصینو تشریف راوړی ؤ او کجکي یې له نږدې ولیدی تر اوسه د هغوی سره په تماس کې یو چې تر اوسه دا قرارداد نه دی شوی ، کیدای شی په نږدې راتلونکي کې به وشي .

پوښتنه : نن سبا زموږ یو شمیر ښاریان د برېښنا د پرله پسې تکانونو او قطع کیدو له امله سخت شکایت کوي د دې لامل څه شی دی په دې اړه څه وایاست ؟

ځواب : لکه چې مخ کې هم اشاره وشوله د وچکالۍ له امله په ذخیره کې اوبه هم لږ دي نو ځکه د کجکي د برېښنا توربینونه په اعلی ظرفیت تولید نشي کولای او هم د برېښنا مصرف ډېر زیات دی ځکه نو د برېښنا په توزیع کې هم ستونزه پیدا شویده ، چې په نوبت سره توزیع کرار نیسي او هم کله ، کله د تخنیکي ستونزو له امله برېښنا قطع کیږي چې په عاجله توګه شپه وی یا ورځ خو بېرته ژر فعاله کیږي .

پوښتنه : ځینې خلك داسې هم وایي په هغه سیمو کې چې امارتي چارواکي اوسیږي پر هغوی هیڅکله هم برېښنا نه قطع کیږي پدې اړه څه وایاست ؟

ځواب : بیله رسمي ادارو ، روغتونو ، واټرپمپو ، مخابراتي ستېشنونو او نورو مهمو ځایو څخه نور ټول کورونه په نوبتي جدول کې شامل دي او مطابق جدول یې برېښنا په نوبت قطع کیږي .

پوښتنه : زموږ یو شمیر ښاریان د برېښنا د کارکوونکو څخه سخت ګیلمن دي چې د ستونزو دا واورلو پر وخت زموږ سره مرسته نه کوی که یې کوی هم خو د ځینو ځانې غوښتنو په بدل کې یې کوی . د دې کار د مخنیوي لپاره مو کوم اقدام کړی دی ؟

ځواب : موږ د خپلوخلکو د ستونزو د لیری کولو په خاطر د شکایاتو صندوق لرو چې اکثره زموږ محترم ښاریان خپل نظریات او ښه ، ښه وړاندیزونه رالیږي . موږ یې لولو او د امکان تر حده پوری یې ستونزه حل کوو . بیا هم ټولو محترمو ښاریانو ته عرض وړاندی کوو که زموږ د موظفینو څخه څوك شکایت لري زموږ سره دی په تماس کې شي . موږ د تفتیش موظفین لرو د هغوی ستونزه به انشاالله حل کړو .

پوښتنه : د ښار څخه د باندې مو کومو سیمو ته برېښنا ورکړیده ؟

ځواب : د کندهار ښار د هوایي ډګر څخه تر باغ پل پورې برېښنا رسیدلې ده . چې د برېښنا توزیع د یو ه منظم پلان له مخې صورت نیسي .

پوښتنه : د برېښنا د یوه کیلو واټ بیه اوس څو افغانۍ ده ؟

ځواب : د برېښنا د یوه کیلو واټ بیه د یوې منظور شوې لایحې په اساس محاسبه کیږي چې د هستو ګنځیو د یوه کیلوواټ بیه له یوه څخه تر ( ۶۰۰ ) کیلو واټو پوری په ( ۶۰۰ ) افغانۍ دی . د ( ۶۰۱ ) څخه تر ( ۱۲۰۰ ) کیلوواټه پوری یو کیلوواټ په ( ۱۲۰۰ ) افغانی دی . او اضافه تر هغه په ( ۲۰۰۰ ) افغانی دی د دکانو ، فابریکو ، کارځایونو او امارتی ادارو لپاره د یوه کیلوواټ بیه ( ۳۰۰۰ ) افغانی ده .

پای

# د کندهار اوسني لیکګران

شپږمه برخه

د کندهار مجلې درنو لوستونکیو موږ دهمدې لړۍ په شپږمه برخه کې څو تنه تنکي ځوانان درپیژنو .

اوویشتم ښاغلی " حیدری "

ښاغلی حیات الله " حیدری " له نن څخه ۷ کاله وړاندې د کندهار ښار په ښ: کې د عبدالله جان په کور کې سترګې پرانستې دی . لومړنۍ کړی یې په احمدیه اسلامی مدرسه اووم ټولګی پورې رسولی دی . اوس هم پخپلو دینی زده کړو بوخت دی . ښاغلی حیدری د لیکګرۍ هنری زده کړې په همدې مدرسه کې د تکړه استاد ملا محمد همنوا څخه تر لاسه کړې دی . په نسخ او نستعلیق لیکونو کې پوره مهارت لری . دا یې هم د لاس ښکلی لیك بیلګه ده .

بسم الله الرحمن الرحیم

پرحسنه رناده

لیکونکی حیات الله حیدری

اته ویشتم ښاغلی " امین "

ښاغلی محمد الله " امین " د محمد امین زوی د ۱۳۶۳ لمریز کال د وری د میاشتې په ۲۴مه نیټه د یکشنبې په ورځ زیږیدلی دی . لومړنۍ دینی زده کړې یې په احمدیه اسلامی مدرسه کې ترسره کړیدی ، نوموړی استاد له کوچنیوالی څخه د لیکګرۍ د هنر سره زیاته مینه درلوده . هغه توده مینه یې وه چې ښاغلی استاد یې د هنر تر لوړو پولو پورې ورساوه . ښاغلی استاد ځانګړی دوکان نه لری خو د ځینو ملګرو په غوښتنه څه نا څه لیکنه کوی ، دا یې هم د لاس ښکلی لیك بیلګه ده .





نهه ویشتم : ښاغلی " فرهاد "

ښاغلی ثنه الله جان " فرهاد " لـه نـن څخه تقریبا ۱۸ کاله وړاندی د کندهار ښار په پنځمه ناحیه کې د حاجی سیف الله په کاله کې دې نړۍ ته سترګی رڼی کړی دی

لومړنی دینی زده کړی یې په احمدیه اسلامي مدرسه کې ترسره کړی دی . هنری زده کړی یې هم په همدې مدرسه کې د ملا محمد همنوا تر بشپړی څارنی لاندی سرته رسولی دی .

ښاغلی فرهاد پرنسخ ، نستعلیق او مات لیکونو ښه لاس بری دی . دا یې هم د لاس هنری او ښکلی لیك بیلګه ده .

د پرشم : ښاغلی " باوری "

ښاغلی شیراحمد جان " باوری " لـه نـن څخه ۱۷ کاله وړاندی د کندهار ښار په څلرمه ناحیه کې د الحاج مولی خان محمد لوح الدین په کور کې د چارشنبی په ورځ دې فانی نړۍ تـه راغلـی دی . لومړنی دینی زده کړی یې پـه احمدیه اسلامی مدرسه کې ترسـره کـړی دي . هنری زده کړی یې هم په همدی مدرسه کې د ښاغلی همنوا څخه ترلاسه کړی دی . ښاغلـی باوری پـه نسـخ ، ثلـث او نستعلیق لیکونوکې اوږد لاس لری دا یې هم په هنری ګوتو لیکل شوی لاس بیلګه ده .

ای لویه خدایه تل واری

د افغانستان اسلامی امارت

الراقم شیراحمد باوری

سلیمان آغا " بهیر "

# د کوکنارو د بندیز بشپړه بریالیتوب له اسلامی امارت سره د اولسی ملاتړ ښکاره دلیل دی

کله چې د مخدره مواد قاچاق او استعمال په نړۍ کې د بشریت د اضرارو او ټولنی د بدمرغیو او فساد یو لوی لامل ګرزیدلی و، او زمونږ د مقدس دین اسلام له نظر ټول هغه نشه لرونکی توکی چې د انسان عقل او روغتیا په خطر کې اچوی د هغو استعمال او قاچاق حرام ګڼل شوی، له همدی امله په قران کریم کې د شرابو په اړه چې د انسان عقل ته زیان رسوی د هغوی خرخول او استعمال ته حرام ویلی شوی دي خو تریاك چې اوږد تاریخ لری او د پخوانیو فیلسوفانو او طبیبانو لخوا به په دارو درمل کې ورځنی کار اخستل کیدی نو په هغه وخت یې د استعمال ګټه د اضرارو په نسبت ډیر کمه وه نو له همدی امله زموږ په . دین کې د تریاکو دممانعت ډیر وضاحت نشته خو کله چې اوس له شرابو او نور د خایناتو سره سم د تریاکو استعمال له دارو درمل پرته د نشی په ډول استعمالیږی او له همدی امله په نړۍ کې د هغو خلکو شمیره چې د کوکنارو یا نورو نشه یې توکیو په استعمال اخته دی تر لسګونو ملیونو اوښتی چې د همدی مخدراتو په استعمال او قاچاق په ملیونونو تنه هرکال په نړۍ کې خپل ژوند له لاسه ورکوی .


د کوکنارو د بوټو له مینځه وړلو عکس

او د زیاتی ټولنیزی بی لاری لکه د غلا شو که ماری قتل او نورو فسادونو سبب ګرزیدلی ده . نو له همدی امله په نړیواله سطحه د مخدره مواد پرضد مبارزه پیل شوی وه . او په زرګونو بلیونه ډالر هر کال د مخدره موادو د مخنیوی لپاره مصرف کیدل نو اسلام چې تر ټولو ادیانو د بشریت خواخوږی دین دی او تل یې په خپلو ارشاداتو کې د انسانیت پر اصلاح او ژغورلو ټینګار کړیدی نو له همدی امله اسلامی امارت د خپل دین په رڼا کې د بشریت د دی نړیوالی فاجعی د مخنیوی لپاره له کوم سیاسی او مادی مقصد پرته د ټولنی د اصلاح په خاطر چرس او شراب یومخ له مینځه یوړل او د کوکنار د له مینځه وړلو لپاره یې تدریجا په وار

وار سره ګامونه پورته کړی چې په اخر کې یې یو داسی تاریخی اقدام وکړ، چې په نړۍ کې یې ساری ندی لیدل شوی او هغه نړیوال چې د مخدره مواد د مخنیوی پخاطر له هر څه پراخو امکاناتو سره سره په خپل دی کار کې ندی بریالی شوی خو اسلامی امارت د عالیقدر امیرالمؤ منین له ۱۹ ګڼه فرمان

چې ۱۴۲۱ کې صادر کړه چې په هغه فرمان کې په ټول هیواد کې د کوکنارو د کښت د نه کرلو امر شوی و، د عالیقدر امیرالمؤمنین له فرمان سره زموږ په ګران هیواد کې د کوکنارو بندیز په ډیره بالی توګه عملی شو چې پدی اقدام سره ټول نړیوال د اسلامی امارت پر حاکمیت او محبوبیت قائل شول خو ځینی هغه هیوادونه یاد ملګرو ملتو اداره چې

اسلامي امارت به يې د مخدره مواد پر کرلو او قاچاق گرم باله او د نه په رسميت پيژندلو اصلي دليل يې هم د کوکنارو کښت او قاچاق ؤ خو اسلامي امارت له کوم فشار او کوم عوض پرته د افغاني ټولنې او ټول بشريت د اصلاح پخاطر لمړی ځل هيواد ورپسې ټوله نړۍ د مخدراتو د قاچاق او استعمال له شره د وژغورلو په مقصد همدا بشر دوستانه اقدام وکړ، ملګرې ملتونه د نړۍ او هغه هيوادونه چې له اسلامي امارت سره يې د دښمنې پلمه همدا د کوکنار و کښت ؤ خود اسلامي امارت دا تر ټولولوی او بشردوستانه اقدام چې ټوله نړۍ يې د مخدراتو د استعمال او قاچاق له اضرارو وژغورله هغه مخدره مواد چې د ټولنې دفساد لوی عامل ؤ د يو شمير موثقو معلوماتو له مخې چې پدې ورستيو کې ترلاسه شوی ويل شوي دي چې يوازې د نيويارك او واشنګټن په ښارونو کې د خدره موادو د لاس ته راوړنې په مقصد د لسو مليونو ډالر و اجناس او پيسې په ورځ کې غلا کيږي همدارازد نوموړيو ښارونو په بازارو او سړکونو باندې په سلو کې پنځوس شوکې او غلا وی په مخدره موادو د روږدو خلکو لخوا کيږي څيړنو ښودلې چې د امريکا متحده ايالات چې د مخدره مواد د مخنيوی لپاره يې کوم مصارف کړي دي د ويتنام ؛ جنګ تر مصارفو اوښتي دي په ۱۹۹۸ عيسوی کال کې يوی سروې ښودلې چې اته مليونه امريکايان د مخدره مواد په استعمال روږد دي چې پدې ورستيو کليونو کې د يوه کيلوهروئينو قيمت ۴۰۰ ډالره وو . په نړۍ کې يې د روږدو شميره تر لسګونو ميلونو پورې رسيدلې او له هغوی څخه د فساد غلا شوکه ماری او نورو فسادونو اندازه په سلو کې ۶۰ ته رسيدلې ده .

اوس پوښتنه داپيدا کيږي چې ايا د قاچاقو دا تجارت څوك کوی د امريکا او اروپا تر پولوپې هم افغانان ور رسومي او که يا بله کومه ځانکړې اداره لري دا اداره څنګه او د چا په مرسته دا کار کوی اوپه څه چل و دي پر مخ تللې نړۍ ته له کمپيوټری وسائلو سره سره د مخدره موادو قاچاق کوی او بله پوښتنه دا ده چې له دومره بشري اضرارو سره بيا هم د ملګرو ملتو اداره د کوکنارو د دی بشپړه بنديز درناوی نه کوی او امريکا او نوره نړۍ د مخدره مواد د استعمال او قاچاق له ټولنيز فساده سره مخامخ ده د ټولنې دی نيسك مرغی او ګټی ته ولې احترام نلري د دی بشر دوستانه اقدام سره ملاتړ ولې نه کوی او ځينې نوری پوښتنې دی چې په کندهار مجله کې مو د مخدره موادو د کنترول د عالي کميسيون له رئيس عبدالحميد اخندزاده او په کندهار کې د مخدره موادو د کنترول د اداري رئيس مفتي عبدالحکيم سره د مرکي په ترځ کې کړی دی چې له خپلو معلوماتو سره يې د مجلې لوستونکو ته څيروو پوښتنه دا ده چې د اسلامي امارت دا اقدام چې نړيوال او ملګري ملتونه لدی دومره مادی وس او توان سره چې د مخدره موادو د مخنيوی لپاره يې په بليونونو ډالر هر کال مصرفول ، بيا هم پدی کار بريالی نشول خو اسلامي امارت د يوه فرمان له مخی د کوکنارو بنديز په بريالي توګه عملي کړ د دی اصلي علت څه وه او څنګه عملي شو ؟

عبدالحميد اخندزاده د دې پوښتنې په ځواب داسې وويل ، د يادونی وړ ده چې اسلامي امارت له مخدره موادو سره له پخوا څخه هم عقيدوی کرکه اواختلاف درلود چې پدی اړه يې ځانګړې باليسی او کړنلارې لرلې چې هغه د علما کرامو تنظيم شوی ستراتيژی د اسلامي اصولو پربيا د ديني وجائبو او بين المللي مسئوليتو او نورو ټوليزه تاريخي ضرورتونو به پام کې نيولو سره اسلامي امارت دا و پتيله چې د کوکنارو د کښت د بشپړه بنديز او مخنيوی پخاطر ۱۹ ګڼه فرمان صادر کړی چې د هغه د بشپړه تطبيق او عملي کولو لپاره اړوند امارتي چارواکو او ارګانونو ته دنده وسپارل شوه چې لازم تدابير او اقدامات تر سره کړی د ځينو امارتي چارواکو د کاري سفرونو په لړ کې چې جنوب لويديځو ولاياتو ته او همداراز ختيځو ولاياتو ته تر سره شوی ؤ .

دهغو سيمو د واليانو ، ولسوالانو ، قومي مشرانو او بزګرانو په ګډون يې پراخې غونډی وکړی د عاليقدر اميرالمومنين د ۱۹ ګڼه فرمان چې د يو تاريخي ضرورت په توګه د نشه يي توکيو د زيانونو او له هغوی څخه

د راپیدا شوی یو ستونځو او د علماء کرامو د شورا پــه اړه یــې اړونــد معلومات ورکړل نو پدی اړه خلکو هم د اسلامی امارت د دی اقدام ملاتړ وکړ او د کوکنارو ونـه کرلو تـه بی غاړه کښیښوده .

بله پوښتنه چې ایا اسلامی امارت د مخدره مواد سره د عقیدوی اختلاف او د هغوی له اضرارو څخه نفرت له کومه وخته راهیسی درلود او پدی اړه یې د فرمان له صدور نه مخکی کوم د یادولو وړ کارونه کړی دی .

د دی پوښتنی ځواب په کندهار کې د مخدره مواد د کنترول او انسجام رئیس محترم مفتی عبدالحکیم راکړ.

د کندهار د مخدره موادو د کنترول او انسجام اداره د خپل تاسیس له وخته څخه د مخدره موادو پرضد مبارزه او فعالیت کوی او پدی لاره کې یې د ویلو وړ کارونه سرته رسولی او مهم بریالیتوبونه یې لاس ته راوړی دي . د بیلگی په توگه د UNDCP سره په تفاهم کې د کندهار دپاره د مخدره موادو دکنترول د عمل پلان جوړشو ، د مسئولو امارتی مقاماتو په لاس لیک د همدغه پلان پر بنسټ د ملگرو ملتو د مخدره موادو د کنټرول نړیوال پروگرام ( UNDCP) د میوند ، خاکریز او غورك په ولسوالیو کې یو زیات شمیر کرهنیزی او عمرانی پروژی عملی کړیدی او هم د کندهار د برق سبب ستیشن رغونه شوی او فعال شویده .

همدا ډول په مطلوبه درو ولسوالیو کې د UNDCP د مرستو په بدل کې ۱۹۹۸ کال کې شل فیصده او ۱۹۹۹ م کال کې پنځوس فیصده د کوکنارو په کرهنه کې کمښت رامنځ ته شو چې دا کمښت د UNDCP لخوا هم منل شویدی . په دغو درو ولسوالیو کې په ( ۱۴۲۰ ق ) کال کې خلور سوه هکتاره مځکه د کوکنارو څخه پاکه شوه دغه زموږ اداره وتوانیدله چې د لوړو مقاماتو څخه حکم ترلاسه کړی چې په

کندهار کې دی پر دولتی مځکو باندی د کوکنارو کرهنه ممنوع او غیرقانونی اعلان شی .

البته د کوکنارو تر بشپړ بندیز وړاندی یو ستر اقدام د عالیقدر امیرالمؤمنین لخوا په ۱۴۲۰ق (۱۹۹۹) کال کې د کوکنارو په کرهنه

کې د یوی دریمی کمښت فرمانخپریدل وه چې پر خپل وخت تعمیل شو او زموږ اداری د هغه به تبلیغ او اشاعت کې ډیر کوښښ وکړ . . . . .

لکه څنگه چې ملگرو ملتونو او نور پرمخ تللو هیوادونو د مخدر مواد د کنترول لپاره په ملیاردونو ډالر لگول چې ښکاره مثال یې د کولمبیا هیواد دی چې ۱۳۰۰ ملیونه ډالر یې د مخدراتو د له مینځه وړلو په مقصد

ورکړی دی چې تر اوسه یې هم په بندولو نده بریالی شوی .

خو اسلامی امارت له کوم فشار او عوض پرته کوکنار په ټول هیواد کې بندکړه اوس پوښتنه دا ده چې د اسلامی امارت لدی بشردوستانه اقدام سره سره بیا هم نړیوال هیڅ عکس العمل نه ښیی ایا دوی د



د کوکنارو پرځای د کرل شویو غنمو فصل

کوکنارو د بشپړه بندیز په اړه کوم
شك لري او که یې لري نو اسلامي
امارت د دې شك د لمینځه وړلو
لپاره څه کړي دي. پدې اړه د کندهار
د مخدر مواد د کنترول او انسجام د
اداري رئیس مفتي عبدالحکیم
داسې ووېل: دا یو څرګند حقیقت
دی چې اسلامي امارت د هیواد په
سطح کوکنار له مینځه یوړل پداسې
حال کې چې دوی یې د عمل هیڅ
توقع نه هم لرله خو مونږ دوی ته د
دې شك د ایستلو پوره اجازه ورکړې
چې پدې اړه د ملګرو ملتونو د
UNDCP اداري لخوا په جنوب
لویدیځ زون کې د کندهار، زابل،
ارزګان او هلمند د ولسوالیو په څه
دپاسه ۲۰۰۰ کلو کې سروې وشوه
او ټول راپور یې دکوکنارو په کرلو
کې منفي وُ او همداسې نور خبریالان
تخنیکي اشخاص او سفارت کارانو
هغه سیمې چې پخوا به کوکنار پکې
کرل کیدل له نژدې لیدلي او
همداراز یې د اسلامي امارت تر واك
لاندې په نورو سیمو کې هم دغه راز
سروې کړې او پدې قانع شوي چې د
افغانستان په ۱۲۳ ولسوالیو کې
چې له پخوا څخه کوکنار کرل کیدل
اوس د اسلامي امارت تر واك لاندې
سیمو کې هیڅ کوکنار ندی کرل
شوی چې ښکاره دلیل یې د ملګرو
ملتو د مخدره موادو د سیمه ایز
دفترد مسئول برنارډ فراهي هغه
اعتراف دی چې د ۲۰۰۱ عیسوی
کال د فبروری پر ۱۰ نیټه یې د یو
مطبوعاتي کانفرانس په ترځ کې
وروسته لدې وکړه کله چې د امریکا
د استخباراتي شبکې سي ای ای
رئیس "جورج ټینټ" په غونډه کې
تور ولګاوه چې اسلامي امارت
دخپلو جنګي امکاناتو د لاسه راوړلو
او مالي لګښت د پوره کولو لپاره د
مخدره موادو له کښت او قاچاق څخه
کار اخلي نو ښاغلي "برنارډ فراهي"
چې په خپله هم د مخدره مواد یو
متخصص دی د جورج ټینټ د
پورتني پوښتنې په ځواب کې ووېل
دا به د امریکا لپاره ډیره درنه تمامه
شي اخر دا خو یو حقیقت دی سترګې
نه وربانډې پیژني زمونږ سیارو
کمسیونونو ټوله هغه سیمه له نژدې
لیدلې ده چې پخوا به د کوکنارو
ځنګلونه ولاړ وُ اوس په هغه سیمه کې
د کوکنارو هیڅ بوټی نه ښکاره کیږي
نو امریکا دې پر طالبانو باور وکړي
ځکه هغوی دروغ نه وایي.
او همداراز په پاکستان کې د امریکا
او ناروې کاناډا به سفارتونو کې د
کوکنارو د بندولو خانګو مشران په
یورسمي سفر کندهار ته راغلي و
زمونږ د دفتر د کارمندانو په ملیتا
هلمند ته ولاړو د کرهنې مځکې یې
وکتلې په کندهار کې یې زراعتي
مځکې ولیدلې له امارتي مسئولینو
او کروندګرو سره یې لیده کاته
وکړل چې هیچیرې یې هم کوکنار
پیدا نکړل او مونږ ټولو نړۍ والو
ملګرو ملتو مرستندویانو خبریالانو
او نورو ته بلنه او چلنج ورکوو چې
راسې سیمې په خپله له نږدې
وګوري او خپل شکونه وکاږي چې
اسلامي امارت په بشپړ توګه کوکنار
له مینځه وړی او کنه؟
دا چې ملګري ملتونه او نړیوال هم
پدې قانع دي او دا یې منلې چې د
کوکنارو دکښت بندیز په بشپړه توګه
عمل شوی او هغه ساحې چې پخوا به
پکې کوکنار کرل کیدل اوس ندي
کرل شوي لدې سره سره چې ملګري
ملتونه د بندیز نعرې تر هر چا ډیرې
وهي، بیا نو څه مشکل لري چې دا
اقدام ورته د منلو وړندي دې
پوښتنې ته عبدالحمید اخند ازاده
صاحب داسې ځواب راکړ: نړیوال
کفر چې هر چا ته ښه معلوم دی د
اسلامي امارت اکثره اقداماتو ته په
منفي نظر ګوري اوس چې اسلامي
امارت دا اقدام کړی پدې کې دوی له
حیرانتیا سره مخامخ دي ځکه دا ډیر
لوی اقدام وُ چې دوی یې په ډیرو
مصارفو مخه نشوی نیولای او په
ټوله نړۍ کې یې چا د بشپړ
بندیز جرئت ندی کړی ملګرو ملتو
او نورو هیوادونو به د اسلامي امارت
د په رسمیت د نه پیژندل او مرستو
نه کول او پر سرحداتو د زیاتي
سختي لګول د مخدره موادو کښت
او تجارت یو لویه او معقوله بهانه
ګڼله او ویل به یې چې افغانانو د
مخدره مواد په کرلو او قاچاق په نړۍ
کې فساد د خپور کړی او روغتیا یې
ستونځې یې رامینځه ته کړې خو کله
چې مونږ تر فرمان مځکې د
کوکنارو د بندولو په اړه د ملګرو
ملتو د مخدره موادو د کنترول
عمومي مسئول (چینواغلام کی) ته
د سرپرستي شورا د محترم رئیس
لخوا د کوکنارو د بندولو وړاندیز
وکړ چې مونږ به په ټول هیواد کې د

یو کال به موده کې د کوکنارو کښت
له مینځه یوسو او له ټول هیواد ځخه
به کوکنار ورك کړو پدی شرط چې
تاسو بـه د افغانسـتان د بزگرانـو
مشـکل رفعـه کـوی د ملـگرو ملتـو
اداری او نورو نړیوالو د دی پیشـنهاد
په ښکاره مخالفت وکړ ویې ویـل کـه
چیری تاسـی دا کـارو کـړی نـو د
افغانستان خلك به له مشکلاتو سره
مخامخ کړی خو موږ دا کار بی لـه
کوم فشـار او عوضـه د دوی د توقـع
خلاف عملی کړ چې افغـانی غیـور
ولس پـه ډیرهٔ میړانـه لـه فرمـان ځخـه
ملاتړ وکړ او هیڅ سـتونځه یـې نـده
راپیښه کړی ځکه اسلامی امارت چې
دوی یې په رسمیت هم نه پیژني یو
داسی تاریخی کار په ډیرپه اسـانی
سره د خلکو په ملاتړ عملی کړ نو د
اسلامی امـارت لـدی اولسـی ملاتـړ
سره یې خپل تعصب نور هم زیات شو
او د هغـو بـهانو پـر ځای چې پـه
افغانستان کې د مخدره موادو تولید
کیږی نـوری بـهانې جـوړی کـړی او
زیاته یې کړه چې په افغانسـتان کې
یـوازی د کوکنـارو موضـوع نـده لـه
افغانسـتان سره نـور سیاسـی مسـائل
هم لرو که چیری فرمان په بشپړه توگه
عملی هم شی له افغانستان سره به د
ملگرو ملتو او امریکا په اړیکو کې
ښه والی رانشی زموږ په نظر نړیوال
نـور نظریات لری له هغوی سره نـور
فکرونه هم شته هغه نه غواړی چې په
نړی کې دی داسی ځوك پیدا شـی او
یا دی داسی قـوت وی چې هغـه دی
پـه ښکـاره د اسـلام او مسـلمانانو
یووال او اتحاد وغواړی .

او د سوچه اسلامی نظام خدمت دی
وکړی .
لکه څنگه چې د دی پر مخ تللی نړی
د تلاشی د عصری کمپیوټری ماشین
الاتو توسره سره بیا هم د مخدره مواد
لـه اضرارو د نـړی پـه گوټ گوټ کـې
هیڅوك ندی خلاص د یو لړ معتبرو
زرائعو لـه قولـه لکـه د امریکـا ټائمز
ورځ پاڼی چې په غټو تورو یې لیکلی
وَ امریکـا د نـړی د مخـدره مـوادو
ترټولو غټ مـارکیټ دی چې پـه یـو
کـال کـې د دیرشـو ملیـاردو ډالـرو
تجارت لـه امریکانـه بـهر تـه ترسـره
کیـږی چـې د امریکـا کولمبیـا او
مکسـیکو هیوادونـو تـر مینـځ دغـه
تجارت خورا په چټکـی سره روان دی
حتی د ځینو منابعو لـه قولـه چې د
امریکـا دولتـی پولیـس پـه دولتـی
گادیـو کـې هروئیـن او کوکـائن
لیږدوی نوایا د مخدره مواد دا پراخ
تجـارت چـې ټولـه نـړی یـې
پرسراخستی د کوم دولت لـه موافقی
پرته ترسره کیدای شی او که یې تر
سره کـوی نـو څوك دی او څنگه یـې
ترسره کوی .
عبدالحمید اخندزاده د دې پوهنتني
په څوابکې داسې وویـل : دا خو هر چا
ته معلومه شویده چې د نړی غټ او
مشـهوره ژورنالسـتان ډیالماتـان د
مخدره مواد په قـاچاق کی لاس لری
او د دوی اقتصـادی گټی پـه همـدی
تجـارت پـوری تړلـی دی چـې د دی
ښکـاره ثبوت د کانـاډا میکسـیکو ،
کولمبیا لمړی وزیرانو یو په بـل پسی
ځان وژونـه ده کلـه چـې پـر دوی د
نړیوالـی قـاچـاق بـری ډلـی مافیـا

غړیتوب ثابت شو . د مخدره موادو
دا انتقال چې په ټنو ټنو د نړی ونورو
هیوادو ته کیږی په امریکا اوروپا کې
یـې قیمـت و دری لکـو ډالـرو تـه
رسیږی نـو دا کـار د عـامو خلکـو
تروس تیر دی ځکه په نن وخت کې د
تلاشـی لپاره ډیر پرمخ تللی وسـائل
شته یوکپسول چې له مخدره موادو
ډك وی . دوی یـې پـه کمپیـوټر
معلومـات کولای شـی نـو امریکـا او
اروپا تـه چـې پـه کـارټینرو کـارټینرو
قاچاق کیږی دا خو امکان نلری چې
د دوی لـه کمپیوټرانو دی دا دومره
غټ غټ کارټینران تیر شی
نومـوړ پـه ښکـاره ویـلای شـو چې د
مخدره مواد قـاچـاق پـه ډیپلماټیکـه
توگه کیږی ، نـو داسلامی امارت لـه
دښمنی سره سره یې خپلی اقتصادی
او تجـاری گټـی هـم پـه خطـر کـې
لویدلی دی .
لکه څنگه چې د افغانستان گاونډی
هیوادونه لکه پاکستان ، ترکمنستان
او ایـران چـې د مخـدره مـوادو لـه
قاچاق سرهٔسرحدی پولی ډیر نا آرامه
وی او د هغو په ساتلو یـې ډیرلگښت
کولـو چـې ملـگرو ملتونـو ډ ایـران
اسلامی جمهوریت تـه دوولـس سوه
ملیونـه ډالـر او د پاکسـتان اسـلامی
جمهوریت تـه یـې دری سوه ملیونـه
ډالر د سرحداتو دساتنی لپاره د یوه
کـال ورکـول . روږ ډیر عسـکر یـې د
پولـو پـه ساتلو مصروف وَ . پـه داخـل
کې یې هم ډیر خلك د مخدره موادو
پـه استعمال روږد وَ لدی بندیز سره
یـې پـه اړیکـو کـې ځومـره ښه والـی
راغلی او د دی فرمان په عملی کولو

کې یې څومره چمتووالی ښودلی و دې پوښتنې ته عبدالحمید اخندزاده صاحب داسې ځواب وایي : په اوسني وخت کې موږ تماسونه نیولي دي د پاکستان د اسلامي جمهوریت سره په جریان کې یو چې په دې اړه دوی هم خپل چمتووالی ښوولی دی او په افغانستان کې د وضع د بهبود او ښه والي لپاره مو ځیني وعدې سره کړي ، خو تر اوسه کوم اقدام ندی سوی او له ترکمنستان سره هم موږ په تماس کې یو . او د مرستې غوښتنه مو ورځنۍ کړې او له ازبکستان څخه مو هم د تماس غوښتنه کړې خو تر اوسه له هغوی سره په مجالسو نیو بریالي شوی او د ۶+۲ هیوادونو په غونډه کې مو په عمومي توګه غوښتنه کړې او د نوری اسلامي نړۍ سره مو هم تماسونه نیولي دي ، خو تر اوسه کوم د یادونې وړ پرمختګ ندی شوی .

لکه څنګه چې د کوکنارو د کرلو له امله خلکو ډیری پیسې لاس ته راوړې چې د یوې سروې له مخې په ټول افغانستان کې پر ۸۲۱۷۲ هکتاره مځکه تریاك کرل کیدل چې یو جریب مځکې ۱۵ کیلو تریاك جوړول او د یو کیلو د تریاکو قیمت یې ۲۰۰ ډالر و نو اوس چې د اسلامي امارت لخوا د کوکنارو پر کښت بندیز لګیدلی او د افغانستان ملت او حکومت په خپله له اقتصادي مشکلاتو سره مخامخ دي نو پردې بندیز په څه اقتصادي اثرات مرتب وي دمخدره مواد د کنترول د عالي کمسیون رئیس عبدالحمید اخندزاده و دې پوښتنې په ځواب کې داسې وویل : اسلامي امارت هم د کوکنارو بندیز ته د مشکل په سترګه کتلی دی او ټول طرفونه یې سنجولي دي خو له کوکنارو ډیر خطرات او اضرار زیږي او بل طرفته د خلکو اقتصادي تړاو ورسره شته چې خلك د هغوی پر عوائدو تکیه لري نو موږ د مخدراتو اضرار او اقتصادي زیانونه دواړه سره مقایسه کړي دي چې د مخدره موادو اضرار د خلکو تر اقتصادي ګټو ډیر دي .

## *موږ د مخدراتو اضرار او اقتصادي زیانونه دواړه سره مقایسه کړي دي چې د مخدره موادو اضرار د خلکو تر اقتصادي ګټو ډیر دي*

خو بیا هم څه نا څه اقتصادي مشکلات شته .

خو د مخدره مواد د هغه لوی او ټولنیز ضرر پخاطر مو د خلکو اقتصادي مشکل ته د مشکل په سترګه ندی کتلی بیا هم اسلامي امارت له خپل توان سره ډیر کوشش کړی چې د خلکو مشکل له بلې لارې رفع کړي او خلکو ته له نړیوالو کومکونه راجلب کړي . او د خپل وس برابر مرستې ورسره وکړي .

د اسلامي امارت د فرمان له عملي کیدو وروسته که چیرې د ملګروملتو اداره او یا دنړۍ نور اسلامي او غیر اسلامي هیوادونو چې د مخدره مواد پرضد مبارزه کې ګډون لري او په بلیونو ډالر مصرفوي د اسلامي امارت د ۱۹ ګنې فرمان په پوره عملي کیدو قناعت ورکړی نو دوی ته به د افغانستان له بزګرانو سره د مرستې ضرورت څه وي .

پدې اړه عبدالحمید اخندزاده داسې وایي . په افغانستانت کې حالاتو اقتصاد هم له مینځه وړی دی چې د افغانستان خلك په اقتصادي لحاظ ډیر له کړاونو سره مخامخ دي موږ چې دا مشکل د مشکل په توګه معرفي کوو . موږ وایو چې دا د افغانستان د خلکو مشکل دی د اسلامي امارت مشکل ندی خو لدې وضاحت سره سره چې ټولې نړۍ ته معلوم دی . اسلامي امارت د مخدراتو د مخنیوی لپاره خپل تصمیم په واضحه او مخلصانه توګه ښکاره کړیدی خو د افغانستان د خلکو مشکلات ډیر اړخونه لري په بعضو سیمو کې د اوبو ستم او په ځینو سیمو کې د زراعت او کانالونو د خرابۍ ستونځه ده او یا د کارخانو د ورانۍ مشکل دی چې له ډیره وخته له کاره لویدلی دی یا ځینې تجارتي سیمې دي خو د هغوی لپاره بودجه نشته یا د قرض له لارې د خلکو کار ونه جوړ شي .

نو دا کار د نړیو له پر مختلليوهیوادونو پرته موږ نشو کولای چې له هغوی سره د دې کار توان شته او دا چې اوس عاجل ورته ضرورت دی هغه نو له بزګرانو سره • دکودکمیاوی او تخم مرسته ده ، دا مشکلات شته که نړیوال واقعا رښتیا له مخدراتوڅخه کرکه لري .

# د کندهار ولایت د کلیواو پراختیا رئیس محترم الحاج مولوی الله نظر سره مرکه

**پوښتنه**: د کلیواو پراختیا ریاست کومې دندې ترسره کوي؟

**ځواب**: لکه څنګه چې زموږ د ریاست نوم د کلیواو پراختیا ریاست دی نو دندې یې هم د کلیوپه چاپیریال کښې وي، پدې معنیٰ هر کار چه کوو هغه د کلیو دودي او پرمختګ لپاره وي. د کلیواو پراختیا ریاست د کلیو دودي او پرمختګ لپاره مختلفې او ځانګړې دندې لري لکه:

ساختماني کارونه یعنې د پل او پلچك جوړول، سړك جوړول د کاریزو او ویالو پاك کول او سربندونه جوړول او ځینې تعمیراتي کارونه، همدارنګه د لاسي صنایعوروا جوړول او سمولول، د کلیو لپاره صحي کلنیکونه تاسیسول او داستفادې وړ ګرځول، د ښاك لپاره د صحي اوبو برابر ول او داسې نور د کلیو ضرورت وړ کارونه ترسره کول. همدا اوس د کلیو پراختیا ریاست په یو شمیر پورتني کارو باندې بوخت دی.

**پوښتنه**: د اسلامي امارت د حاکمیته راپدې خوا په کندهار کې د کلیو پراختیا ریاست په کوم کال کې په خپل فعالیت پیل کړی او امکانات یې څه وه؟

**ځواب**: د کلیو پراختیا ریاست د اسلامي امارت د حاکمیت له تاسیس سره یو ځای د ښاروالي سره په شریکه یې کار پیل کړی او د جوزا پر ۱۲ پر ۱۳۷۵ کال د ډیرولږو امکاناتو په درلودلو سره خپل لومړني او ابتدائي کار پیل کړ او هغه زاړه او له کاره لویدلي وسایل او وسایط چه په ډیرو ویجاړو او د منځ تلو په حال کښې وه سره راغنډ کړل او د څوځو وسیلو د پرزو دیو ځای کیدو په نتیجه کښې یې یو څو نیمګړې د کار وسیلې جوړې کړې او په ورځني چارو کښې یې ځني استفاده کوله لکه یو عراده د مترك موټر یو لوډر، یو ګریډر او داسې نور لوی او کوچني ابتدایي او زاړه ماشین الات.

د دغو وسیلو او وسایطو د راغونډولو په نتیجه کښې د ریاست بنیاد تاسیس شو. بل دا چه فني پرسونل هم نه و موجود چه دفني پرسونل استخدام هم یو ضروري امر و. نو د ضرورت په اندازه او د کار د حجم برابر فني کار او پرسونل هم استخدام او په کارو ګمارل شول پدغه ذکرشوي امکاناتو سره زموږ اولني کار شروع شو او د خپل خلګو دخدمت لپاره د عمل ډګر ته ورګډ شول.

**پوښتنه**: د کلیو پراختیا ریاست اوس کوم تخنیکي او نور امکانات لري؟

**ځواب**: د کلیو پراختیا ریاست د هغو زړو او مستعملو وسایطو د ترمیم لړۍ ژوندۍ ساتلې ده او یو شمیر هغه پخواني زاړه ماشین الات او وسایط یې ترمیم او فعال کړي لکه دري دګراز د مترك موټران، یوه عراده ګریډر، دوې عرادې لوډران، یوه عراده د اوبو ټانکر، یو عراده لنګر په خپل واك کښې لري او د هغوی جدي مراقبت او ترمیم کیږي تر څو د خپلو وطنوالو د اړتیا وړ کار ورځني واخلي. همدارنګه د کلیو پراختیا ریاست د خپلو امکاناتو څخه په ګټه اخستو ځني وسایط او ماشین الات پر خپل وخت تهیه او برابر کړي لکه: دوې عرادې ترکتوران، یو عراده بایفور موټر او هم د ضرورت وړ واټرپمپونه او داسې نور تول د کار افزار (لکه بیلچې، کلنګان، ګاډۍ ...).

باید ووایم چې ځینې مرستې د مرستندیو بین المللی مؤسسو لخوا هم زموږ سره شوي لکه څلور پایې د برمې وهلو دستګاه وي، یوه عراده بایفور موټر، همدارنګه زموږ د مالي، تخنیکي او اداري چارو د پیاوړتیا په خاطر یوه د کمپیوټر دستګاه، دغه وسایل په کندهار کښې د یونسیف د اداري لخوا برابر او زموږ سره د مرستې په توګه تر سره شوي تر څو د کار په ډګر کښې تري ګټه واخستل شي. پورته نومول شوي وسایل او وسایط اوس زموږ په اداره کښې

موجود او د کارونود مخ ته بیولو لپاره تری گټه اخیستل کیږی خو باید وواییم چه دغه وسایل او وسایط کافی ندی، ځکه اوسنی ویجاړ تیاوی او خرابی چه کلیوال ورسره لاس او گریوان دی د هغو بیارغونه او جوړونه و ډیرو نوی او عصری ماشین الات تـه ضرورت لـری متاسفانه دغه امکان زموږ سره بیخی کم دی. پدی مرکه کښی هیله ده چه اړوند امـارتی اداری او بیـن المللی ذیربطه موسسات توجه وکړی او زموږ د وسایلو وسایط د ډیروالی او عصری توب په هکله خپل پام راو اړوی.

**پوښتنه**: پـه کندهار کې چه کلیو او پراختیا ریاست د اسلامی امـارت د حاکمیت راپدی خوا پـه فعـالیت پیـل کړیدئ لکه د نامـه څخـه چـه یـې معلوميږی چې د کلیـواو پراختیـا ریاست نور د کلیو د پراختیا لپاره یې څه کړیدی؟

**ځواب**: د کلیـواو پراختیـا ریاسـت دنده کلیو تـه و ده او پراختیـا ورکـول دی. د کلیو پراختیا ریاست د اسلامی امارت د حاکمیت سره یو ځای په خپل کار پیل کړی دی، او پخپل ټول تـوان او طاقت چه ورسره موجـود و او دی وخلکوته یې د خدمت په لار کښی ندی سپمولی. پدغه موده کښی یې خوراً د ارزښت وړ او د خیر کارونه سرته رسولي چه هر یو یې د خلکو لپاره د خـاص ارزښت او قـدر وړ دی. دا دی هغـه کارونـه او پـروژې چـه د ۱۳۷۵ کـال راپـه دی خـوا زمـوږ د اداری لخـوا د خلکو د سوکالی لپاره ترسره شویدی پدغـه وسیله تاسـو او زمـوږ گرانـو وطنوالو د خبرتیا لپاره در پیژنو:

۱- د ډنډ پـه ولسوالی کښی د ده بـاغ څخه بیا تر منصور غنډی پوری دسړک جوړولو او ترمیم پروژه پـه اوږدوالـی د ۲۷ کیلو مترو.

۲- د پنجوایـی پـه ولسـوالی د زنـگی آباد په کلی کې ۱۰ کیلومترو په اندازه د سړک جوړولو پروژه.

۳- دارغنداب په ولسوالی کښی د بابا صاحب څخه بیا تر خوجه ملك پوری د شاهی کانال پرغاړه د ۱۷ کیلو مترو په اندازه دسړک جوړولو پروژه.

۴- د دامـان پـه ولسـوالی کـښـی د مومندو پـه کلی کښی د ۵ کیلومترو په اندازه سړك جوړول.

۵- په هوائی ډگر کښی د ۲۰۰۰ متره مربع په اندازه د مځکی هوارول.

۶- د ډنډ پـه ولسوالی کـی د ده بـاغ څخه بیا تر منصور غنډی پوری ۴۲ پلچکان جوړول.

۷- د پنجوائی په ولسوالی کې د زنگی آباد د کلی پر سړك باندی ۲۸ پلچکه جوړول.

۸- د کندهـار ولایـت پـه مختلفـو ولسوالیو کښی ۴۸ کاریزونه او ویالی پاکول او اصلاح کول.

۹- د بوم پـه دښت کـښی پـه مختلفو [illegible] سـره د ۴۶ شـپـږځلویښت پلچکانو جوړل.

۱۰- د پنجوائـی پـه ولسـوالی کـې د ریگو د کلی د کانال د سربند جوړول.

۱۱- د پنجوائی د ولسوالی د سپیروان دکلی د کانال سربند جوړول.

۱۲- د پنجوائی پـه ولسوالی کـښی د زنگی اباد دکلی دکانال د سربند جوړول.

۱۳- د شیرسرخ پـل پـه سـپـور ۷نیم متـره پـه اوږدوالـی ۸ متـره جـوړل.

۱۴- د ډنډ پـه ولسـوالی کـښـی پـه ۱۳۷۶ کـال کـښی د ۴۰ څاگانـو جوړول او بمبه اینښوول.

۱۵- د دامان پـه ولسـوالی کـښی پـه ۱۳۷۶ کـال کـښی د ۶۰ څاگانـو جوړول اوبمبه اینښول.

۱۶- د شگی پـه ولسـوالی کـښی پـه ۱۳۷۶ کـال کـښی د ۳۵ څاگانـو جوړول او بمبه اینښوول.

۱۷- د دامـان پـه ولسـوالی کـښی د ۵۰۰ مکانو (تشنابو) جوړول.

۱۸- د شگی په ولسوالی کښی د ۳۰۰ مکانو (تشنابو) جوړول.

۱۹- د ډنډ په ولسوالی کې یو غټ پل په نامه د اسلامی پل مځکی د خلقی پل په نامه جوړول.

۲۰- د غورك په ولسوالی کښی یو پوخ او عصری انسانی کلنیك جوړول.

۲۱- د ډنډ پـه ولسـوالی کـښی یـو استنادی دیـوال پـه اوږدوالـی د ۶۳۰ مترو جوړول.

۲۲- د هلمند ولایت د مرجی ولسوالی په سیستانی کښی یو استنادی دیوال په اوږدوالی ۲۵۰۰ [illegible].

۲۳- د اروزگان ولایت د چارچینو پـه ولسوالی پـه ساخر کښی د یو لـوی او اساسـی پـل جـوړول چـه د دغـه پـل اوږدوالی پوره سل متره دی او عـرض یې څلور متره او په دواړو خوا وکښی یې اوږده استنادونه جوړ شوی دی.

۲۴- د اروزگان ولایت د چـارچینو پـه ولسوالی کښی د سړك جوړول.

۲۵- په میرویس مینه کښی د پنجاب پر ویاله یو لوی پل جوړول.

۲۶- د اروزگان پـه ولایـت کـښـی د چارچینو پـه ولسـوالی کـښی د دو پنځوس څاگانـو د اصـلاح او بمبـی نصبول. سربیره پر پورتنی کارونو غټ

او واړه کارونه هم د دغه ریاست لخوا شویدی چه د ټولو ویل فکر کوم دلته ځای نلري

***د کلیو او پراختیا ریاست د خپل پورته پروژو او کارو تر څنګ خلکو ته د صحت او چا پریال د پاک ساتلو خبري او نصحت هم کړي دي.*** چه څرنګه باید خپل ځان او چارپریال پاك وساتي تر څو د ښه صحت خاوندان و اوسو . پدغه مورد کښي یو شمیر پلاکارتونه او مصوری نشری هم و دوی ته رسول شوي او د دوی په واك کښي ورکول شوي دي.

**پوښتنه** : اوس فعلا د کلیو د پراختیا لپاره کوم کارونه ترلاس لاندی لری او د راتلونکی لپاره کوم پلانونه لری.

**خواب** : د کلیو پراختیا ریاست هم هغی د پخوا په څیر په خپلو کلیوالی کارونو بوخت او لګیا دی او یوه لحظه هم معطل او وزګار ندی ناست . سږ کال د دوبی په موسم کښي زموږ وطنوال او کلیو خبر دی چه خلك د ډیری سختی وچکالی سره مخامخ و، د کلیو پراختیا ریاست خپل ټول طاقت په کار اچولی تر څو پدغه هکله د خپلو وطنوالو سره مرسته او د څښاك د اوبو د پیدا کولو دپاره یې هلی ځلی کړیدی په مختلفو ځایو کښي برمی وهلی او بمبی ایښي دی تر څو د خلکو دغه لوی مشکل له منځه ولاړ سي . همدا اوس د کلیو پراختیا ریاست د (۱۰۰) برمه یي ځاګانو پروژه د ډنډ او ارغنداب په ولسوالیو کښي ترلاس لاندی لري ، چه قریب د پنځوس ځاګانو د برمی وهلو او بمبی ایښودولو کار یې پای ته رسولی او ګټه اخستلو ته په بشپړ توګه چمتو دی . او ډیر ژر به د پنځوس نورو د برمی وهلو او بمبی ایښوولو کار پای ته ورسوی او د کلیوالو د ګټی اخستلو وړ وګرځی .

سربیره پر دی یوه بله پروژه چه هغه هم د اوبو رسولو پروژه ده او پنځوس ځاګان پکښي شامل دی دغه پروژه به هم انشاالله ډیر ژر د میوند په ولسوالی کښي پکار ولویږی او د خلکو د څښاك د اوبو مشکل به تر یو حد حل کړی . همدارنګه موږ یوه بله د (۸۰۰) تشنابونه جوړولو پروژه هم د ارغنداب او ډنډ په ولسوالیو کښي لرو چه کار یې همدا اوس شروع او قریب (۱۰۰) تشنابه یې جوړ شوی دی او د نورو کار په چټکتیا سره روان دی او په نژدی راتلونکي کې به د دغو ټولو اته سوه تشنابو د پروژی کار پای ته ور رسیږی او زموږ د وطنوالو د استفادی وړ به وګرځی . باید ووایم زموږ اداره هر ساعت او هر ګړی وکار کولو ته چمتو ده هغه دندی چه د اسلامی امارت لخوا وموږ ته راکول کیږی انشاالله بی له ځنډه او معطلی د اجرا وړ دی . زموږ د اداری اینده کړنلاره هم د کلیو وده او پرمختګ دی .

موږ تصمیم لرو هغه څه چې موږ په پوهیږو تر څو په اول پړاو کښي د وچکالی په سبب وخلکو ته د څښاك اوبه برابری کړو . پدغه مورد کښي د ډیرو مرستندیو ادارو سره تماس لرو تر څو مناسب وخت تر لاسه او خلکو ته صحی اوبه برابری او هم وکړای شو وچکالی ځپلو خلکو سره نور هم کومك وکړو . د خلکو د تګ راتګ لاری او سړکونو ته نور هم په کلیو کښي وده او پراختیا وکړل سی ، پدی مورد چه د ترانسپورتی لارو جوړول هم موږ خپله دنده بولو او زموږ سره د دغو کارو پلان شته چه که د الله "ج" رضا وه لکه څنګه چې پخوا پدغه مورد کښي کار شوی دی په اینده کښي به هم دغه کړنی روانی وی .

د کلیو او کلیوالو د کاریزو او ویالو بیا رغونه او جوړونه هم زموږ د کړنلاری بله بیلګه ده او دغه کار هم زموږ ددندی یو بل اړخ دی . پورته ذکر شوی کارونه زموږ آینده کړنلاره ده .

**پوښتنه** : که هیوادوالو خصوصا د کندهار مجلی لوستونکو ته کوم پیغام لری واضح یې کړی ؟

**خواب** : د کندهار مجلی د محترمی اداری څخه ډیره ، ډیره مننه چه زموږ اوزموږ د کار سره یې مینه پیدا سوه ، هیله ده چې زموږ دکار او فعالیت لړیه وطنوالوته وښیی او هغه څه چه سرته رسیدلی دی په ښه توګه ونشرته وسپاری . زموږ یوازنی هیله دا ده چه و ټولو وطنوالو ته دا پیغام ورسول شی هغه کارونه چه په کلیوکې کیږی لکه پلچکان جوړول ، سړك جوړول ، د لاسی بمبو ایښودل او داسی نور د دغو شیانو جدی څارنه اوړ مراقبت وکړی تر څو ښه تره زموږ وطنوال د هغو شیانو څخه ګټه واخلی او دوام ورکړی . او بل دا هیله لرو چه د مرستندیو ارګانو پام زموږ کارونو ته راواړوی تر څو زموږ سره د نوی او عصری وسایلو په اکمالولو کښي مرسته وکړی .

په اخیر کښي یو ځل بیا د کندهار مجلی د ټولو کارکوونکو څخه ډیره مننه کوم او بریالیتوب د پاك الله "ج" د دربار څخه درته غواړم خدای دی وکړی چه خپلی چاری د وطن او اسلام د خدمت لپاره نوری هم پراخی کړی .

# خبرونه او راپورونه



۱۴ ذیقعده الحرام :

عالیقدر امیرالمؤمنین د پاکستان د کورنیو چارو وزیر خپل درانه حضور ومانه .

زموږ خبریال خبر راکړ :

عالیقدر امیرالمؤمنین د کندهار ولایت په میلمستون کې د پاکستان د اسلامی هیواد د کورنیو چارو وزیر محترم هین حیدر خپل درانه حضور ومانه . پدې کتنه کې د اسلامی امارت د بهرنیو چار وزارت سیاسی مرستیال محترم ملاعبدالجلیل آخند د مالیې وزیر محترم ملا آغاجان د جنوب لویدیځ زون تنظیمه رئیس او کندهار والی محترم ملا محمد حسن رحمانی او یو شمیر نور د اسلامی امارت چارواکی حاضر وه محترم معین الدین حیدر د امریکا او روسیې په غوښتنه د ملګرو ملتو د امنیت شورای لخوا زموږ په هیواد باندی د لګیدلو بندیزونو په اړه خپله ناخوښی څرګنده کړه همدارنګه عالیقدر امیرالمؤمنین پدې اړه د افغانستاد د اسلامی امارت دریځ روښانه کړ او د کفری نړی او نورو ظالمو او زورګیرو قوتونو په وړاندی د نړی د مسلمه امت د یووالی غوښتونکی شو عالیقدر امیرالمؤمنین په خپلو خبروکې د نړی په مسلمانانو باندی د امریکا نا حقه او ظالمانه تیری وغندل او زیاته یې کړه امریکا حکومت د اسامه بن لادن د ورکړی خبره اسلامی امارت ته بهانه نیولی او وایي چې دی د امریکائیانو قاتل دی حال دا چې کوم سند په لاس کې نلری او موږ چې سند په لاس کې لرو او تولسی نړی ته هم تر لمر روښانه ده چې جنرال عبدالملك د زرګونو بی ګناه افغانانو قاتل دی او موږ په وار وار د جنرال عبدالملك د راتسلیمولو غوښتنه کړی خو چا خصوصاً امریکا او ملګرو ملتونو غوږ ندی ورباندی نیولی چې امریکا په زور سره خپله غوښتنه حقه او زموږ ناحقه بولی محترم معین حیدر د ذیقعده الحرام په ۱۳ نیټه زموږ هیواد ته په یوه رسمی سفر راغلی چې لمړی یې په کابل کې د امارتی چارواکو سره وکتل او د عالیقدر امیرالمؤمنین سره ترکتنی وروسته د خپل هیواد په لوری ستون شو

۱۶ ذیقعده الحرام :

د امربالمعروف ریاست موظفینو ۱۳۰۰ کیلو ګرامه چرس وسوځل .

د کندهار مجلې خبریال خبر راکړ :

په هیواد کې د مخدره موادو د استعمال ، کرهڼی ، تولید ، او قاچاق د مخنیوی او له منځه وړلو لپاره د عالیقدر امیرالمؤمنین د فرمانونو په رڼا کې د اسلامي امارت د اړونده ادارو د هاند او هڅو په لړ کې د کندهار ولایت د امربالمعروف او نهی عن المنکر ریاست موظفینو د خپلو ګړنده فعالیتونو په نتیجه کې دهمدې ولایت د سپین بولدك ولسوالی په مربوطاتو کې ۱۳۰۰ کیلو ګرامه چرس کشف او ترلاسه کړل چې نیول شوی چرس پداسې حال کې چې د دغی ولسوالی د یوشمیر امارتی ادارو مسئولین او همدااراز د دغه ولسوالی زیات شمیر اوسیدونکی حاضر وه د امربالمعروف او نهی عن المنکر ریاست د موظفینو لخوا ورته اور واچول شو او سوځول شول

۲۳ ذیقعده الحرام .

د خلیلی بدنامی ملیشی په بامیان ښار کې د اسلامی اوردو ځواکونو لخوا سخت وټکول شول .

زموږ خبریال د بامیان ښار څخه خبر راکړ

د خلیلی بد نامی او اجیری ملیشی چې مخکی د اسلامی اردو د ځواکونو لخوا ټکول شوی وی او د بامیانو ولایت په لیری غرنیو سیمی کې تیت او پرك شوي او د عامو خلګو په منځ کې پټی شوی وی د موسمی حالاتو د تغیر لا امله وحدتی ملیشی یو ځل بیا سره راټولی او د ذیقعده الحرام د میاشتی په ۲۰ نیټه یې دخپلو بادارانو د خوښی په خاطر د بامیان په ښار کې ګډه لوټه رامنځ ته او د دغه ښار د اوسیدونکو ژوندی یې یو ځل بیا

د ویری او وحشت سره مخ کړ چې په بامیان ښار کې د اسلامی اردو میشتو ځواکونو د عامو خلکو د مرګ ژوبلی د مخنیوی لپاره د دغه ښار څخه شاته ولاړی خو نن د اسلامی امارت د اسلامی اردو اتلو او سربښندونکو ځواکونو په خپله سربښندنه د بامیان ښار د اوسیدونکو د آرامه ژوند تامینولو ته ور ودانګل او د سهار په ۷ بجو یې په خپلو بریالیو عملیاتو پیل وکړ او دورخو تر لسو بجو یې د بامیان ښار څخه اجیری ملیشې وشړلی او دغه ښار یې په بشپړه توګه د اجیرو او بدنامو وحدتی ملیشو څخه پاك کړ او د نوموړی ښار اوسیدونکی یې یوځل بیا د سوله ایز ژوند څخه برخه من کړل.

د فتبال ۲ ټورنمنټ دایر شویدی چې یو خزانی او بل بهاری ټورنمنټ چې په بهاری ټورنمنټ کې ۱۲ A تیمونو اشتراك کړی وه چې د دغه ټورنمنټ په لوبو کې د آرین د فتبال تیم لمړی مقام دوهم د تفاق د فتبال تیم لمړی مقام، دوهم مقام د پامیر د فتبال تیم دریم مقام د آرین د فتبال تیم ترلاسه کړ.

د کرکټ یو تورنمنټ دایر شو چې شپږو تیمو اشتراك کړی وه پامیر د کرکټ تیم لمړی مقام دوهم مقام د کندهار پوهنتون د کرکټ تیم ترلاسه کړ.

همداراز د کندهار د زیبائي اندام منتخب کلب ریاست عمومي المپیك په رسمی بلنه د ټول افغانستان په انتخاباتی تورنمنټ چې په کابل کې دایر شوی اشتراك کړی وه چې د کندهار د زیبائي اندام منتخب تیم لمړی مقام ترلاسه کړ او ریاست المپیك له خوا څخه یو دانه کپ د قهرمانۍ او شل دانی مډالونه او شل دانی تقدیرنامې د زیبائی اندام منتخب تیم ته ورکړه شوه چې په دغه انتخاباتی تورنمنټ کې او د لاندی کلبو د ورزشکارانو اشتراك کړی و: د احمدی کلب د زیبائی اندام، د اتفاق د زیبائی اندام، د بهار او نورزائي کلب او د کندهار د زیبائی اندام کلب ورزشکارانو اشتراك کړی وه.

همداراز د پاکستان د اسلامی دولت دال پاکستان د بلوچستان د فتبال تیم افغان کندهار ته د یو لړ مسابقو د پاره راغلی لمړۍ مسابقه یې د کندهار د مسلم د فتبال تیم افغان کندهار دری په مقابل کې د صفر د کندهار د مسلم د فتبال تیم سره وکړه چې نتیجه یې دوهمه لوبه د کندهار د اتفاق د فتبال د تیم او پاکستان د چمن د افغان د فتبال د تیم تر مینځ وشوه چې لوبه دوه په مقابل کې د دوه ګوله مساوی پای ته ورسیده.

بیا د پاکستان د کوړك تیم کندهار ته راغلی و لمړی لوبه یې د کندهار د آرین د فتبال د تیم سره وکړه چې دوه ګوله په مقابل د صفر د کندهار د آرین د فتبال د تیم په ګټه پای ته ورسیده.

همداراز د فتبال د B ګروپونو د فتبال دایره شوه چې څلویښت B تیمونو اشتراك وکړ وروسته د C ګروپونو د فتبال ټورنمنټ دایر شو

څلویښت C تیمونو اشتراك کړی و

همداراز د کراټې مسابقی د کندهار په ورزشی سټډیوم کې ترسره شوی د محترم استاد حبیب الله باوری د افغانستان د ازادی مبارزی د قهرمان تر مشرۍ لاندی چې پدغه مسابقو کې د استاد رازمحمد اغا د کراټې کلپ د استاد شیرزاد کلپ د استاد همایون کلپ د سید سرور آغا کلپ د استاد بریالی کلبو اشتراك کړی و: پدغه مسابقه کې په پورته وزن کې فرید احمد د استاد راز محمد آغا د کلب شاګرد لمړی مقام او په کښته وزن کې احمد خالد د استاد حبیب الله باوری د کلب شاګرد لمړی مقام ترلاسه کړ.

د بایسکل دوانی په مسابقوکې چې لس تیمو اشتراك کړی و چې د استاد حبیب الله بایسکل دوان د A په ګروپ کې لمړی مقام او تاج محمد د B په ګروپ کې لمړی مقام تر لاسه کړ.

همداراز د ځغستا لوبی هم ترسره شوې چې ۲۵کیلو په مسافه کې جمعه خان لمړی مقام بحادر دوهم مقام او شیر آغا دریم مقام ترلاسه کړ.

همدارنګه د میندو: نړیوالی ورځی په مناسبت د میندو د محبټ د ځغستا بایسکل دوانی والیبال د رسۍ کشۍ لوبی ترسره شوی دی چې د کندهار د سپورټی او بدنی روزنی د آمریت له خوا څخه نقدی جایزی اوسوغاتونه ورکړل شوی دی.

د کندهار د شپږو تیمونو تر مینځ انتخاباتی یو تورنمنټ جوړ شو چې په دې لړ کې د پامیر د کرکټ تیم لمړی، آرین دوهم او پوهنتون دریم مقام تر لاسه کړی په دغه تورنمنټ کښی د کندهار د منتخب لوبی دپاره څوتنه هم انتخاب شول چې په کابل کښی یې د ټوله افغانستان د کرکټ په تورنمنټ کښی برخه واخیسته او دوهم مقام یې ترلاسه کړی او همدارنګه د کندهار د منتخب تیم څخه یې د افغانستان و ملی تیم ته نفر والیږله چې محمد طاهر، سعدالله، محمد عالم، نعمت الله او رحمت الله "قریشی" د یادونی وړ دي.

**د ښځینه او غابنو د ډاکټرانو دپاره د لایحې او فیسونه ټاکنه**

د جنوب لویدیځ زون دعامی روغتیا ریاست د ډاکترانو، درمل پلورونکو، د التراساونډ "ایکسرې"، د E.G.G کارکونکو، لابراتواری معایناتو کونکو د پاره د لایحی او فیسونو د ټاکنی په تعقیب د نوموړی ریاست د صحی قوانینو د بررسۍ او کنترول د کمیسیون د دقیق غور او پلټنی په نتیجه کې د ښځینه او د غابنو د ډاکټرانو دپاره هم لایحه ترتیب او د

مختلفو عملیاتونو دپاره یې فیس ورته تعین کړ. او ټول صحی کارکونکی یې د لایحو او ټاکلي فیسونو په مراعت کولو مکلف کړل. نوې لایحه او فیسونه په لاندی ډول دی.

**د ولادی نسائي ډاکترانو او قابله ګانو د کار لایحه:**

۱- ولادي او نسائي مریضان یواځی هغه ډاکتره کتلای شی چې د طب د فراغت قانونی اسناد ولری. قابله ګانی او ښځینه نرسانی دتداوی او اختصاصی ولادی نسائي امراضو د نسخې ورکولو حق نلری.

۲- قابله یواځی د نورمال ولادت په باب کار کولای شی په هغه صورت کې چې د قابلګۍ رسمی شهادتنامه ولری.

۳- ولادی نسائي مغلق او په جراحی پوری مربوط کېسونه باید ولادی نسائي ډاکتران په شخصی کتنځایو او کورو کې اجرا نکړی روغتون ته دی استوي.

۴- په رسمی وخت کې هیڅ کومه ډاکتره او قابله نشی کولای مریضان په شخصی کتنځایو کې معالجه او تداوی کړی.

**د مختلفو ولادی نسائي امراضو لپاره لاندی حق الزحمه ترتیب شوی ده:**

- نورمال ولادت: ۲۶۰۰۰۰ دوه لکه او شپیته زره افغانی. (ډاکتره او قابله)
- په پورسېس ولادت (چپه ماشوم): ۳۶۰۰۰۰ دری لکه او شپیته زره افغانی. (یواځی ډاکتره)
- Breach ولادت یا د سامان په واسطه. ۳۶۰۰۰۰ دری لکه او شپیته زره افغانی. (یواځی ډاکتره)
- د دستکش او سپیکولم په واسطه معاینه (نسائي کتنه): ۴۵۰۰۰ پنځه څلویښت زره افغانی. (یواځی ډاکتره)
- د مریض عادی معاینه ۳۰۰۰۰ دیرش زره افغانی. (یواځی ډاکتره)
- د سامان یا لوپ تطبیق: ۲۵۰۰۰۰ دوه لکه او پنځوس زره افغانی. (یواځی ډاکتره)

**په شخصی کتنځایو کې د غاښو د ډاکترانو د کارکولو لایحه او اجرت:**

۱- هر هغه شخص چې د غاښو کتنځی خلاصوی باید د غاښو د ډاکتری مکمل اسناد ولری او اسناد یې د صحت عامې له خوا تائید او ملاحظه سی.

۲- هغه څوک چې د غاښو د ډاکتری اسناد ونلری د دې حق نلری چې د غاښو شخصی کتنځایونه خلاص کړی.

۳- دندان ساز یواځی د غاښو د جوړولو کار ترسره کولای سی د غاښو د کښلو او تداوی کارونه باید اجرا نکړی.

**د غاښو دمختلفه امراضو دتداوی لپاره لاندی اجرت تعین شوی دی.**

- د یو غاښ کښل ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زره افغانی.
- مریض ته نسخه ورکول ۱۵۰۰۰ پنځه لس زره افغانی.
- د عقل د غاښ کښل ۶۰۰۰۰ شپیته زره افغانی.
- د خرابو ریښو ایستل ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زره افغانی.
- د غاښ کښلو وروسته د خونریزی توقف ۴۰۰۰۰ څلویښت زره افغانی.
- د ابسې شق کول ۸۰۰۰۰ اتیا زره افغانی.
- د صدغی فکی خاعی ارجاع ۷۰۰۰۰ اویا زره افغانی.
- د یو سیټ چینایي غاښونو بیه ۱۵۰۰۰۰۰ پنځه لس لکه افغانی.
- د یو سیټ هندی او پاکستانی غاښونه ۱۲۰۰۰۰۰ دولس لکه افغانی.
- د یو پلاستیکی غاښ جوړول ۱۰۰۰۰۰ یو لك افغانی.
- د تیرو څنډو پالش کول او اصلاح (بروتیز) ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زره افغانی.
- د یو سیټ مکمل پوښ (طلا خپله د مریض) ۱۰۰۰۰۰ یو لك افغانی.
- د نیم سیټ استر کول ۹۰۰۰۰ نوی زره افغانی.
- د نیم سیټ ترمیم د ګرمو موادو پوسیله ۱۵۰۰۰۰ یولك او پنځوس زره افغانی.
- یو غاښ ترمیم ۴۰۰۰۰ څلویښت زره افغانی.
- د لویدلی شیف جوړول ۷۰۰۰۰ اویا زره افغانی.
- د یو سیمی چنګك جوړول ۲۰۰۰۰ شل زره افغانی.
- د یو لویدلی چنګك ترمیم ۷۰۰۰۰ اویا زره افغانی.
- د لب چاك عملیات ۶۰۰۰۰۰ شپږ لکه افغانی.
- د غاښو پاك کاری ۵۰۰۰۰ پنځوس زره افغانی.
- د دوا تطبیق فی مرتبه ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زره افغانی.
- د دوا تطبیق په جوف د خولی کې ۲۵۰۰۰ پنځه ویشت زره افغانی.
- د غاښ ډکول د املګم پواسطه ۱۰۰۰۰۰ یولك افغانی.
- د غاښ ډکول د سلیکات پواسطه ۱۰۰۰۰۰ یو لك افغانی.
- د غاښ ډکول د کمپیوریت پواسطه ۱۵۰۰۰۰ یولك او پنځوس زره افغانی.
- د ګانګرین (خراب) سوی غاښ تداوی ۱۰۰۰۰۰ یولك افغانی.

پای




## دا ستا خوږې خبرې جانانه یې څه نه دي !

# ایا تر نظریې بل لوړ هدف هم شته ؟

د کندهار د درنې مجلې درنو
چلونکو !
سلامونه او نیکی هیلی می ومنی !
چاره ګر خدای ته لاس په دعا یم چی
په خپلو ټولو نیکو چارو کې بریالی
اوسی !
د کندهار مجلې په لوستلو سره مې سترګی خوږې او د خپل ګران اوښکلی هیواد تنده مې وربانده ماته شوه . په دې خبره ډیر ویاړم چی د اسلامی اِمارت تر سپین توغ لاندی تنکیو ځوانانو په هر ډګر کې د وران اوټپی هیواد بیا ودانولو ته ملا تړلی ده . په تیره بیا په فرهنګی ډګر کې خو د ګرانو اِمارتی چارواکو هڅی په ځانګړی ډول د یادولو او تقدیر وړ دی . د دې اندازه د کندهار او خلافت مجلو د ورځ په ورځ پرمختګ نه په ښه ډول لګیدای شی .
د کندهار د مجلې د پښتنیو له یو څه " پاکستانیت " نه که ورتیرشو نو خدای شته چی خورا په زړه پوری دی د دې ګڼی مطالب خو دومره خوندور وو چی آن تصور یې هم نه شی کیدای او بیا بله د خوند خبره خو دا ده چی دا ځل تر موږ پردیسیانو پوری خورا ژر او د چاپ له تاکلی نیټې نه سمدستی وروسته راورسیده .
خیریوسی ! کورمو ودان غله مو ډیره . د دې ګڼی د مجلې په مطالبو کې مې د بیلابیلو اِمارتی اوولسی پاړکو له استازو سره د مرکو برخه ډیره خوندوره او په زړه پوری وه په تیره بیا د ښایسته کندهار له ښاروال سره مرکه . وایې چی مطبوعات د ولس او حکومت تر منځ د پله ښه لری ځکه نو مطبوعات باید د ولس غږ د چارواکو تر غوږونو پوری ورسوی او که داسی ونه کړی بیا نو هغه د عربی مقولی په وینا چې .
" فانتظر الساعة "
درنو چلونکو : له خپل هیواد نه په زرګونو کیلومتره لری پراته موږ " پردیسیان " ځان ته په دې خبره ډاډ ورکو چی نو که موږ له هیواده د باندی پراته یو څه خبره ده ز موږ هغه نور وروڼه خو خورا په اخلاص لګیا دی کارکوی . کله کله به مو د مثبتو خبرونو او د اسلامی اِمارت د لاسته راوړنو خبری واوریدی نو په زړه کې به مو افغانستان ته د تګ " شوق " غزونی وکړې خو چی بیا به مو په هنداره کې خپل شنه مخ او سیمتی بریتو ته وکتل نو ویره به راسره پیدا شوه چی هسی نه موږ ته هغه د چمن د " کریکټرانو " کانه راوشی . دانو بیاو الله که خوند کوی چی د فرانسی پریس ، اسوشئید پریس ، ډی پی آ ... او نورو خبری اژانسونو عکاسانو ته مې خو له لکه هغه د طالبانو غوا وازه نیولی وی تبلیغاتی ګټی به یې دښمنان پورته کوی او د قربانی د خوسکی کار به یې له مانه اخستی وی . په هر صورت خبری اوږدی او سر یې یو . موږ خپل ځانونه د ځینو نیمګړتیا وو له امله د دې وړ نه بلل چی د سپینو طالبانو صف په خپل شتنه والی سره ولړو خو دا ځل د کندهار په مجله کې او د کندهار د ادبی انجمن د ښاغلی عبدالقیوم مینه وال د مرکې په لوستلو سره راته ځرګنده شوه چی دغه د خیر کار خو دا دی تر موږ وړاندی نور واندیوالانو کړیدی او له دې سره بوخت راته

جوته شوه چې په شمالي ولایاتو کې طالبان ورونه ولې د پنجشیر له خولې نه په اوښتلو نه دي بریالي شوي . د مینه وال د مرکې د ځینو برخو په لوستلو سره ما فکر کاوه چې دا به نو هغه د پخوانیو رژیمونو کوم اکاډمیسن وي چې په سري وي خو امارت به د " قحط الرجال " او یا هم کوم بیړني مجبوریت له مخې استخدام کړی وي خو کله چې مې په مازغو زور راوست نو دا خبره په کې راوګرځیده چې ښه نو چې داسې ده بیا یې نو ولې په یوکراین ، قرغیزستان او روسیه کې پناه نه ده اخستې ؟ خو چې یو څه مې نور هم په مازغو زور راوړ ، نوپوه شوم چې دا هماغه مینه وال دی چې ما څو کاله وړاندې د طلوع افغان په دفتر کې لیدلی وو . غالبا دا به ۱۴۱۹ کال وو ، هغه مهال زه له ځینو مشرانو سره له جرمنی نه کندهار ته تللی وم . زه د طلوع افغان د یتیمي ورځپاڼې چې ( هغه مهال یې مسئول مدیر نه درلود ) په دفتر کې ناست وم او د کړکۍ نه هاخوا د سړک په سر د خلکو ګڼې ګوڼې ته ژور چورت وړی وم چې په سړك د زغلیدونکو خلکو په منځ کې یو کمزوری سړی په زاړه هندي امبر بایسکل سپور او د طلوع افغان دفتر ته راننووت . دوړې یې له ځانه وڅنډلې او د نس له جبره یې موړ ته سلام راواچاوه . ماته یوه ملګری راوپیژاند . عبدالقیوم مینه وال ښه شاعر پخوانی ......... کار کاوه اوس له امارت سره همکار دی هغه وخت یې ښې په واك خبرې کولې . د کار ښه جذبه ورسره وه . بیا نو زه بیرته جرمنی ته راغلم او په خپلو زده کړو بوخت شوم . د وخت د وړومی د مینه وال په ګډون د ډیرو خلکو تصویرونه د ذهن په پردو کې سره تیت کړل د وطن باد به مو یواځې د کندهار ، خلافت ، طلوع افغان ، شریعت او کله ناکله هم د هیواد ورځپاڼې په لوستلو تازه کاوه خو دا ځل چې مې د کندهار مجلې د تازه ګڼې پاڼې سره اړولې نو نابېره مې د مینه وال په مرکه سترګې ولګیدې . مرکه چې مې پایته ورسوله نو خدا یږو په رښتیا ګو ورته هک پك پاتې شوم چې که دا سړی چیری هغه سر وهلی بروهلی مینه وال وی چې مالیدلی وو نو بیا یې دا د هغې ورځې او د نن په خبرو او افکارو کې دا دومره ژورتوپیر څنګه راغلی دی ؟ د اسلامي امارت په لیکو کې خو باید چې د سړي ایمان نور هم ټینګ شوی وای او عقیده یې نوره هم پخه شوې وای خو دا مینه وال ولې دومره مخ په خوړه تللی دی ؟

ښاغلی مینه وال په خپله مرکه کې له یوې خوا ځان د اسلامي امارت تر ټولو لوی مدافع ګڼي او له هرې خبرې سره ځای او بې ځایه د اسلامي امارت ټکی خامخا ننبلوي مګر کله چې خبره د افکارو را شي نو بیا د یوې پوښتنې په ځواب کې وایي چې " شاعر باید د یوې نظر یې ښکار نه شي !!! " . د دغې خبرې نه دوه برداشته اخستل کیدای شي لومړی خو دا چې شاعر باید د یوې نه بلکې د څو نظر یو ښکار شي او یا هم دا چې شاعر له یوه مخه د یوی نظر یې ښکار هم نه شي چې دا بیا د تولستوی ، ماکسیم ګورکي ، اقبال لاهوري او پابلو نرودا په آند یو منافقت او دوه مخی توب دی . شاعر د دغې خبرې له کولو نه وړاندې باید دا فکر کړی وای چې ایا په خپله یې هم دغه اصل په ځان کې عملي کړی دی او که نور خلك هسې له لارې باسي .

مینه وال په خپله له دې نه په مخکینۍ خبره کې په ډاګه کوي چې د طلوع افغان او شریعت غږ راډیو لپاره د لیکنو او اشعارو د سانسور دنده هم د ده په غاړه ده . د شاعر له دغې خبرې نه د هغه د اوروستنۍ خبره دروا غ ثابتیږي ځکه د ښاغلی مینه وال دغه کار له دوو انګیزو خالي نه دی . یا به دا سانسور د دې لپاره کوي چې د حاکمي نظر یې له چوکاټه وتلې لیکنې تیرې نه شي . او یا به یې هم یواځې د خپل رزق او تنخواه د حلالولو لپاره کوي . په لومړی صورت کې نو دا له یوه مخې ناشونې ده چې مینه وال دی له حاکمي نظر یې نه ګوښې او ناپیلي پاتې شي . ښه نو چې شاعر په خپله په یوه نظریه پوری تړلی بیا نورو خلکو ته ولې له نظر یې نه د تیښتې درس ورکوي ؟ او که ښاغلي مینه وال د دغه ډول بې سر او پښو خبرو په کولو سره غواړي د راتلونکو لپاره ( OPTION ) پرانستې پریږدي او د رژیم د بدلیدو په صورت کې په اسانۍ سره ځان د هغه په رنګ ورسره ولړي . خو زه د ښاغلي مینه

وال داخبره هم بنده بولم. څکه د امارت اوسنی بهیر ته په کتلو سره زه په ډاګه دا ویلای شم چې د دغسې خلکو ارمان به که خدای کول هیڅکله هم نه شي پوره . له دې نه وروسته ښاغلی مینه وال څرګندوی چې " شاعر باید لوړ هدف ولري " ایا تر نظر یې بل لوړ هدف هم شته ؟ او چې نظر یه نه وی بیا نو کوم او څنګه لوړ هدف ؟

. بله دا چې که یو شاعر د کومې ځانګړې نظر یې په چوکاټ کې منفي تولنیز دودونه ترسالم انتقاد لاندې رانه ولي او د هغه د سمون لارې چارې نه کړي په ګوته بیا به نو هغه څه کوی ؟ په دغه صورت کې هغه ته یواځې د فواید عامې د قیر د تورو بیلرونو ، د ښنتو د بټیو او بلدو زرو ستاینه پاته کیږي او بس د پای خبره مې دا ده چې ښاغلی مینه وال وایې شاعر د تولنې هنداره ده . که رښتیا همداسې وی بیا خو د افغانانو ډیره ګټه ده . موټروانان باید سمدستی د خپلو موټرانو په هره دروازه یو یو شاعر راځوړند کړي . ځوانان خپلو شنو مخونو ته ( ترما بتره ) په هنداره کې ونه ګوری بلکې یو یو شاعر دې رانیسې . او د اطلاعاتو اوکلتور ریاست لپاره خو نو مینه وال صاحب بس دی او که ډیر رش وی صاحب دل صاحب هم د یوی پلنې هنداری کار ورکوی . خدای دې وکړي ښاغلی مینه وال به زما په دې دلیل سره له خپله دریځه واوړي او وبه یې منی چې اصلاً شاعر نه بلکې شعر د تولنې هنداره ده خیر که ئی نه منی زموږ دګریوان تنې هم والله که وشلیږي .

مینه وال صاحب دې خوا نه بدوی . یو نو کې دې ښه سی . تر اوسه یې لا شاعری هم په خدای که هغه پړاوته رسیدلی وی چې دی نو وار له واره د سقراط او افلاطون په ژبه خبری وکړي . دا د لنګر بې احسانه ډوډۍ ده صالح په دغو پیرو څو وګټلی چې اوس په پښتور کې له کور اوره لری پروت دی . اوریدلی مو لا دا دی چې اوس یې د یوه پیژندل شوی " کښوری والا " په مټ په یوه لویدیځ هیواد کې سیاسی ( اقتصادی ) پناه د ترلاسه کولو هڅې پیل کړي دی . خدای دې وکړي زما خبری بدی در ونه لګیږي . زما نیت خدای شته اصلاحی دی . پښتنو هسې هم ویلی دی " دوست به دې وژړوی او دښمن به دې وخندوی " .

" پردیس له جرمنی څخه "

*ګرانه پردیسه* ! له قادر خدای " ج " نه دې د پردیس زړه خوښې غواړو دا چې تاسو له دومره لیرې هیواده موږ پخپل قلم نازولی یو نو موږ پرته له کومې ملاحظې ستاسو لیك خپور کړ او پاته شوه په شعر کې د نظریې او هدف خبره نو پدی کې درسره هر د ضمیر خاوند موافق دی څکه چې شعر پخپله یو شعوری او فکری پیغام ته ویل کیږي نو که په شعر کې د کومې نظریې یا فکر پیغام نه وی ښایې مهمل الفاظ وګرځي خو د مینوال د شخصیت په اړه به موږ اطمینان درکړو چې یو مجاهد او سپین ږیری مسلمان دی زموږ له اداری سره یې پوره همکاری کړی دا چې هغه پخپله لاتر اوسه یو داسې زلمی دی چې د زده کړې او مطالعې پړاونه یې نیمکړي پاته دی نو ښایی د کوم چاتر اغیز لاندې یې څه له خولې وتلی وی هغوی پخپله د دې ملاحظې په خواب کې څه نه نلری بلکې ستا په نظر دی . خو نن چې هغه زموږ فرهنګی همکار دی نو باید د پښتو پدې متل یې معاف کړو چې وایې : ګل بی خاره نه وی .

ستاسې د نوری فرهنګی پاملرنې په هیله . ادا ره

## له کوټې څخه نثار احمد آریا

تر سلامونو وروسته کاږی : د کندهار مجلې پردیس ۱۰ مه او ۱۱مه ګڼه هم د تیرو ګڼو غوندې په زړه پوری وه دمجلې په اړه یو نظر لرم چې ستاسو پام ورته را اړوم . هغه دا چې د مجلې سرلیکونه ډیر لږ وی . په مجله کې ډیر څه وی خو په لیك لړ کې لږ راغلی وی . که تول ورکړی نو یقینا د مجلې په خرڅلاو کې به زیاتوب راوړی

کندهار مجله : ګرانه ښاغلی نثار احمد اریا صاحب :

سلامونه ته دی وعلیکم سلام وایو . ورورہ نظر دی د قدر وړ دی موږ هم په تیره دولسمه ګڼه کې یاد کړی دی که د مجلې لومړی مخ کې د لیك لړ دپاره ځای زیات وی نو بیا هرومرو ستا مشوره ومنل شي .

## له کوټي څخه رفيق احمد اريا

تر سلامونو او ښو پيرزوينو وروسته کاږي

که د کندهار مجله همداسې په لوړه کچه راووزي نو انشاالله په مطبوعاتي ډګر کې به خپل لوړ مقام تثبيت کړي. او هم انشاءالله زه به خپله قلمي همکاري در څخه ونه سپموم. ډول ډول مطبوعاتي مواد به درته وليږم. خپريدل يې په تاسو پورې اړه چې خپروې يې او که نه. د دې ادعا اثبات لپاره د يوه کمزور او غريب هلك چې په خپل همت سره ليکوال سو د ژوند حال د کوچنيانو د پاڼې د پاره درژباړم او درليږم هيله ده چې خپاره يې کړي.

کندهار مجله: ګران رفيق احمد اريا صاحب زموږ سلامونه او ښه پيروزيني هم ومنه. د کندهار مجله مخکې هم لوړ مطبوعاتي مقام درلودی او انشاالله په آينده کې به يې هم ولری خو که لوستونکي ليکوال همکاری روانه ورسره وساتي ژباړه به دی په راتلونکو ګڼو کې درته خپره کړو.



## له کوټي څخه رفيق احمد وجدان

تر سلامونو او ميني وروسته کاږي:

د يوې غوښتنې د پوره کيدو هيله لرم لکه څنګه چې نوموړې مجله څو اړخيزه مجله ده. خو دا چې د ملت ابلاغي ذرايع په اوسنيو وختونو کې محدود دي له هيواد څخه په عامه پيمانه نه وځي نو په پوره ډول د ملت په داخلي اوضاع سره خبريدل هم څه ګران دي. نو غوښتنه مې دا ده چې که چيری تاسې وکولای شی داسې يو مضمون هم په کندهار مجله کې نشر کوی چې په هغه کې تاسې داسې څه وليکې چې هغه مهم خبرونه وی د افغانستان په هکله دی او په هيواد کې د مهمو پيښو، په زړه پوری خبرو د يادولو وړ تبديليانو سره موږ لوستونکي خبر کړي په زړه پوری به وی.

کندهار مجله: ګرانه ورور رفيق احمد وجدان صاحب زموږ نيکې هيلې او سلامونه هم ومنه. ستاسو دغه غوښتنه دکندهار مجلې د راپورونو او خبرونو په پاڼه کې پوره سوې ده. که تاسو چيری د مجلې د خبرونو او راپورونه پاڼه ولولی انشاالله ډير مهم راپورونه، خبرونه او پيښې به پکښې ولولی.

## زموږ يو بل لوستونکي جهانزيب نسيم

تر سلامونو وروسته کاږي. زه يو وړانديځ لرم هغه دا چې بايد په دغه مجله کې د افغانستان پر تاريخي پيښو او ځايونو ته د کتنې يو لړۍ شروع شي او دګران هيواد نوی ځوانان [illegible] ځيني خبر سي. او په پای کې ځير کتيا ازماياست د پاڼې ځوابونه درليږم.

کندهار مجله: ګرانه وروره جهانزيب نسيم صاحب زموږ سلامونه هم ومنه. موږ وار په وار وخپلو لوستونکو ته د افغانستان د تاريخي پيښو او ځايونو په اړه معلومات ورکړي که دخدای خوښه وه په راتلونکې ګڼه کې به داسې کوو. او رالیږلي ځوابونه دی ديوه په استثنا نور ټول سم وه.

## له چمن څخه امان الله قلم دوست

تر سلامونو وروسته ليکي:

د نن په نړۍ کې نشرات او مطبوعات د اولس او هيواد له مهمو ستنو څخه يوه ستن ده. چې ارتيا او اهميت يې له پخوا څخه يو په سل چنده لوړ سوی دی. او په راتلونکی کې به انشاالله څه ګټور مطالب ومجلې ته د نشر دپاره ډالۍ کړم.

کندهار مجله: ګرانه وروره امان الله قلم دوست صاحب قلم دی له ګوتو مه لويږه. واقعاً سالم مطبوعات او نشرات د هيواد او اولس په ګټه دی که ګټور مطالب او مضامين راوليږې انشاالله د وخت د غوښتنې سره سم به يې درته چاپ کړو.

## له کوټي څخه ګران ورور مجيب الرحمن "مجيب"

تر سلامونو وروسته په يو لنډ ليك کې داسې ليکي د (حرمين شريفين) تر عنوان لاندی يې يو مضمون ستاسې مجلې ته درولیږی هيله ده چې په راتلونکی ګڼه کې يې نشر ته وسپارې.

کندهارمجله ګرانه ورورمجيب الرحمن "مجيب"وعليکم سلام مضمون به دی د وخت سره سم درته نشر کړو.

## له کوټي څخه محمد ابراهيم سپيڅلي

تر سلامونو وروسته ليکي:

په تيره ګڼه کې مو زما درليږل سوی مطالب د ژمنې سره سم نه کړه نشر خو بيا هم د صبر کانۍ پر زړه ږدم يو ليك، د عاشيه کلام او يو نثر هم د خپريدو دپاره په هيله درليږم. خدای دی وکړی زما د هغه نورو مطالبو غوندی يې ضايع نه کړی.

کندهار مجله: ښاغلی محمد ابراهيم سپيڅلي صاحب! لومړی زموږ سلامونه او ښه هيلی ومنه! تير مطالب دی نشر شول په راتلونکې وخت کې به د ی د نورو مطالبو د نشر هيله هم پوره شي

